وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ



# انوار المجالس

پښتو



## فرمودات

حضرت صاحب المرتبت شیخ القرآن والحدیث پیر طریقت

رهبر شریعت الحاج خلیفه صاحب دین محمد مدظله العالی

خلیفه مجاز

حضرت شیخ المشائخ خلیفه صاحب داد محمد غزنوی مدظله العالی

جلد دریم

ناشر
خانقاه عالیه مجددیه عمریه
ڈیره اسماعیل خان

# کتاب پیژندنه:

نوم : انوارالمجالس

فیوضات : شیخ القران والحدیث حضرت

خلیفه صاحب الحاج مولوي دین محمد مدظله العالی

تولونکی اوترتیب کونکی : مولوي سید محمد عمرفاروقي

کمپوزران : مولوي محمداکرم نعماني،

فضل الرحمن فضلي او ولي محمدتائب

دوم چاپ : دریم جلد / ۲۰۰۰ توکه

دچاپ کال : ۱۴۳۲ / محرم الحرام – ۱۳۹۰ل قوس



خپرونکی : خانقاه عالیه مجددیه عمریه

روح المدارس روحانیه (ډیره اسماعیل خان)

# ډالۍ

زما د دې کمې هڅې ثوابونه ، خپل مور، پلاراو خپلو ټولو

مشائخو کرامو، استادانو ته، چې زما په ظاهري او باطني

تربیت کې یې پوره پوره هڅه کړې ، ببښم.

(سید محمد عمر فاورقي)

| شمیره | فهرست | مخ |
|---|---|---|

# (٤٤) مجلس

## دایمان حقیقت دخواهشاتو په پریښودلوکې پټ دی

کامل اوحقیقي مؤمن هغه چاته ویل کېږي چې خپل نفسي خواهشات ټول پرېږدي اوپه دین باندې ځان برابر کړي، بلکې له نفسي خواهشاتو څخه دغه دین ورته محبوب شي لکه خپل خواهشاتوچې په خوراک کې خوند ورته پیداکېږي .په څښاک کې خوند ورته پیداکېږي. په جماع کې خوند ورته پیداکېږي . په دنیاوي نعمتونوکې ده ته صوت اوخوند پیداکېږي.

واقعي مؤمن هغه څوک دی چې دغه خپل خواهشات یې ټول دشریعت تابع شي ،اوشریعت دغسې ورته محبوب شي ،دهغه په شریعت کې دزړه خوشحالي پیداکېږي په لمانځه کې ،په روژه کې ،په تلاوت کې ،په ذکر کې دالله تعالی ﷻ په دین کې هغه ته خوند پیداکېږي خپل خواهشات دشریعت تابع وګرځوي اوداشریعت ده ته طبعي وګرځي . چې دده زړه دشریعت سره اشنا شي .

حضرت بشرحافي چې مخکې یې هم واقعه بیان شوې ده اویو لوی بهترین ولی الله تیرشوی دی .دی وایې چې زما زړه دالله تعالی سره دومره جوړ ده که زما لاس ددې اراده وکړي چې زما لاس دې پردې شي ته ورسیږي ؛خو چې زړه مې دالله تعالی سره

جوړ ده ،زړه مې نه مني چې لاس دې شي ته وروړم .که زه په ښنو اراده وکړم چې یوبد ځای ته ورشم خوزما زړه دالله تعالی ﷻ تابع دی زما پښې ددې بدکار طرف ته نشې ورتلای .

نوواقعې مؤمن هغه څوک دی چې خپل خواهشات یې دشریعت اوددین تابع شي ،زړه اونفس دسړې ته یوځه وایي اوشریعت بل څۀ ورته وایې ،دی به دنفس تقاضا پریږدي اوپه شریعت به روانیږي .

دغوخلکو ته بیا په دین کې داسې خوند خدای پاک ﷻ پیداکوي چې هرڅومره تکیفونه په دین کې په دوی ورځي دوی ته هیڅ باک نه ورکوي .

داحد په غزا کې چې دحضرت نبي کریم ﷺ سره کوم صحابه کرام ﷺ موجود و پدغو کې داسې صحابه کرام و چې (۷۳) زخمونه یې په بدن مبارک باندې موجود و. داسې صحابه کرام موجود و چې (۸۳) زخمونه یې په بدن مبارک کې مجود و. هغه چې له ډېرو زخمونو له وجې شهیدان شوې هغه خوڅۀ کوي ؟

کله چې بیرته مدینې منورې ته راغلل بیا آوازه شوه چې ابو سفیان اونورمشرکین بیا راوګرځیدل اوبیا په دوهم وار باندې په مدینه منوره حمله کوي . حضرت نبي کریم ﷺ بیا دجهاد اعلان وکړ چې هغه څوک دې جهاد ته را ووزي چې پرون په احد کې شریک و،هغه دې نه راځي چې دأحد په غزا کې شریکت نه دی کړی ،نوصحابه کرام ﷺ داسې په شوق اوخوند راووتل چې په بدن کې یې ۱۱-۱۱ زخمونه و، یا (۱۹زخمونه و ،دوی پټی لرې کړي

،دوا اومعالجه یې پرېښوده ،دزخمونوباوجود یې دحضرت نبي کریم ﷺ خبرې ته لبیک وویلې اوجنګ ته تیار شول ؛نو الله تعالی ﷻ دهغوخلکو چې درسول الله ﷺ دامراجابت یې وکړ درضا اعلان یې وکړ.

اوس دهغو خلکو خواهش دشریعت تابع و ، کنه زړه چېرې دا غواړې چې په بدن دې (۱۹) زخمونه موجود وي اوله بدن څخه دې وینې توئیږي اوبیا دې دجنګ میدان ته ورشي . داوجه داده چې ددوی په زړونوکې دایمان حقیقت اوعشق پیدااوو ؛نوداتکلیفونه هیڅ نه ورته ښکاره کیدل ځکه خوند پکې موجود و.

لکه دحضرت ابوطلحه بن زبیر ﷺ دحضرت نبي کریم ﷺ له پاره خپل ځان توره اوډال ګرځولی وو،دهرې خواڅخه به چې غیشې اونیزې راتللې ده به لاس مبارک ورته ونیو اوخپل وجود مبارک به یې ورته ډال وګرځاوه، لاس مبارک یې شل شوخوده پرواهم نه درلوده؛خوچې حضرت نبي کریم ﷺ محفوظ وي،په خپل بدن یې (۷۳) زخمونه برداشت کړل ،په ژوندهم نه و،وجه داوه چې خواهش یې ددین تابع و، په دین کې خدای پاک خوند ورته پیداکړی و.

ددانبیاء کراموعلیهم السلام اوصحابه کراموﷺ خو ډېر لرې تیرشوې دي دازموږ اوتاسې په نږدې وخت کې داسې علماء کرام تیر شوې دي چې ددین په وجه یې ډېر زیات تکلیفونه برداشت کړي دي.

## دعلم په زده کړې پسې زيات تکليف ته اړتيا ده

دحضرت صاحب دمدرسې يوعالم قصه کوله چې زه هندوستان ته سبق ته تللی وم، په ټول کال کې مې يوجوړ جامې اويوپټکی و،دمنځلو توان اوطاقت مې نه درلود پټکی مې داسې شوی ولکه پړی.نور جامې مې نه درلودې بيامې يو پوستين وهغه مې ومنځه هغه ته مې تنې. کينبودې هغه مې قميص کړ په هغه کې به ګرځيدم.

دلويې دورې (دحديثودوره) طالب وم يوځل په وظيفو په سې تللی وم په يوځنګله کې بيزوګان راباندې راغلل داپوستين يې هم راباندې څيرې کړ،لوڅ لغړ شوم. بيا يوبل طالب يووړوکی څادر راکړ په هغه کې مې درې شپې تيرې کړې،بيا مې په يوه اباسې باندې شپږ کزه خمتا واخيسته چې څلور ګوتې سور يې و په هغه کې مې دومره تنګ قميص وګانډه چې ناسته اوولاړه مې نه شوی پکې کولای . ددومره تکليف تيرولو وجه څه وه ؟ وروڼو! ددې ټولو تکليفونو برداشت کولووجه داوه چې په دين کې خوند ورته پيداوو ،الله تعالی ﷻ ورته اسانه کړې وه.

دمخکينيواولياء کرامو واقعات چې سړی ګوري داسې حالات ورباندې تير شوي دي چې دبرداشت وړ نه دي. لوږې ،تندې،وهل

ټکول ،بندبخانې قسم - قسم زحمتونه ورباندې تیرشوې دي خولکن په دین کې دوی ته خوند وعشق و.

څوک چې دین ته تابع شو ،دایمان حقیقت یې زړه ته ولویده بیا پدغه کې خوند ورته پیدا کېږي.

## دخدای پاک ﷻ په عبادت په دنیا کې دجنت میوې لیدل

یوخلیفه صاحب قصه راته کوله چې یو طالب په افغانستان کې په ژمي کې دمدرسې نه به ووت اولړې به په غره کې په واورو کې ناست و، تلاوت به یې کاوه، نوزه ورغلم چې ګورم طالب په تلاوت لګیا ده،ژاړي. پوښتنه مې ورنه وکړه چې څه کیفیت دی ؟ ده راته وویل چې زه کله دا تلاوت شروع کړم اودلته راووزم زه دجنت میوې په سترګو وینم.

نوچې سړی دالله تعالی ﷻ دنعمتونواحسان په ده باندې وي نوبیا دواورې په تکلیف باندې څه پوهیږي. بیا په ساړوباندې څه پوهیږي. نود خدای پاک ﷻ په دین باندې عمل کولو کې خوند ورته پیدکوي.

هرڅوک چې په کامله توګه دین ته تابع شو ،زړه یې صفا شو،دزړه په مرکز باندې کار وکړي بیا رب تعالی ﷻ دغسې استعداد په هر انسان کې ایښی بیا خدای پاک ﷻ له انسان یوکامل انسان جوړوي بیا دا انسان تکلیفونه هم برداشت کولای

شي ،خدای پاک ﷻ يې ورته اسانه کړي ،په دغه انسان باندې په شريعت باندې تلل بدنه لګيږي .

خو يوصورت دايمان ده هغه دادی چې موږ په خوله کلمه وايو په زړه تصديق ورباندې کوو ،لمونځ کوو،روژه نيسونور ظاهري اعمال کوو اوحقيقت دايمان دادی چې هرشی به دې دشريعت تابع وي ؛ نوصرف په صورت باندې بايد موږ اوتاسې اکتفی ونکړو. چې لمونځ کوم اوروژه نيسم ،هغه طرف ته اخلاص شته اوکه نشته ،زموږ په زړونوکې دالله تعالی ﷻ سره محبت شته اوکنه،له رسول الله ﷺ سره مو مينه شته اوکنه؛نويواځې فرائض اوواجبات کولو باندې کار نه کيږي ترڅوچې مو له خدای پاک ﷻ اوله حضرت رسول الله ﷺ سره مينه اومحبت پيداشوې نه وي . خوځوک چې خدای پاک ﷻ ته محبوب شي لکه مخکې موچې وويل نوملايکې يې هم محبوب ګڼې ،انسانان يې هم محبوب ګڼې تاسې به ډېر ليدلې وي چې ډېر خلک ډېر پخوا وفات شوې دي ،نه يې چاته قوم معلوم وي ،نه يې مورااوپلار معلوم وي خوبيا هم ډېر زيات خلک يې زيارت ته ور روان وي ،نور دابيا ځان ته خبره دی چې زيارت کول هم يواصول لري چې بايد دشريعت په چوکاټ کې وشي .

اصل خبره دادی چې هغه انسان خدای پاکﷻ ته تابع ووځکه رب تعالی ﷻ دا اثر پکې اينبی چې څوسوه کاله وروسته خلک په دې هيله ورځې چې ګوندې دده په برکت سره خدای پاک ﷻ زمونږ

سوالونه قبول کړي . ددنیادارو زیارتو ته خلک نه ورځي ؛خو دولي ،شهید اوداالله د دوستانو زیارت ته خلک ورځي .

حضرت ابي ایوب انصاري ﷺ د روم په قسطنطنیه کې وفات شوی خوصحابه کرام ﷺ به ورتلل ،دی به یې خدای پاک ﷻ ته وسیله ګرځاوله رب تعالی ﷻ نه به یې دده په برکت دمرضونو شفا غوښتله اوبارانونه به یې غوښتل اوخدای پاک ﷻ به ددوی حاجتونه پوره کول .

همدارنګه امام بخاري ( رحمه الله ) چې په ( خرتنګ) کې وفات شوی ،علماء کرام به ورتلل اوحاجتونه به یې دده په واسطه غوښتل ،بارانونه به یې دده په واسطه غوښتل اوقبلیدل به .

بخاري شریف دبدرینو نومونه مبارکین رانقل کړي اوپه حاشیه کې ورسره لیکي چې څوک ددوی نومونه تلاوت کړي وروسته دهغه نه دعا وغواړي نوخدای پا کﷻ به دهغه دعا قبوله کړي .

کتابونه لیکي د دوی نومونه چې دهرمشکل له پاره واخیستل شي هغه مشکل به یې خدای پاک ﷻ ور حل کړي .

امام النووي ( رحمه الله ) فرمایي چې څوک دنیکو خلکو مجلس یادونه اوتذکره کوي نوپه هغه ځای باندې دخدای پاک ﷻ رحمتونه نازلیږي .

نوددې ټولو وجه دادی چې رب تعالی ﷻ ته دوی ګران شي چې د دوی په واسطه رب تعالی ﷻ ته بیا سړی ورنږدې کېږي ،د دوی دعا ،د دوی سپارش بیا رب تعالی ﷻ نه رد وي .

مرقات لیکي چې څوک دنیکو خلکو دقبرو په څنګ کې دعا وکړي ،خدای پاک ﷻ یې ددې نیکوخلکو په برکت قبلوي ؛ خوددې خبرو به لحاظ کوي چې بې حیا یې به نه وي،بې سترې به نوي،ناروا خبرې به نوي،طوافونه به نه کوي ،سجدې به نه ورته کوي.

نو خدای پاک ﷻ له موږ نه حقیقت دایمان غواړي اوحقیقت دایمان دادی چې دشریعت تابع شي اوهرکله چې دشریعت تابع شو بیا اخلاص اومحبت هم پیداکېږي. بیا دا انسان رب تعالی ﷻ ته دومره نږدې شي چې په دنیاکې هم درب تعالی ﷻ سره خبرې کوي ،په قبر کې هم خبرې کوي ،په قیامت کې خودټولو انسانانو سره مخامخ خبرې دي.

## دخدای پاک ﷻ نه دناز خفګان

حضرت موسی علیه السلام یوځل دالله تعالی ﷻ دیدار ته روان و، نوپه لار کې یې یوسړی ولید ،سلام یې ور واچاو خوهغه دسلام ځواب ور نه کړ. خداوندمتعال ﷻ له موسی علیه السلام نه پوښتنه وکړه چې په لار کې دې څه ولیدل؟ حضرت موسی علیه السلام ورته وویل چې ای رب تعالی ﷻ هو ! دتا یوبنده و ،ما سلام پرې واچاو خوهغه ځواب رانکړ،ډېر کبرجن و.

رب تعالی ﷻ ورته وایې چې هغه کبرجن نه دی ، هغه زما نه مرور دی. حضرت موسی ﷺ ورته وایې چې ولې له تانه مرور دی

داځرنګه انسان دی ؟ خدای پاک ﷻ ورته وایې چې ددې سړې پنځه سوه کاله عمر دی اوپه ټول عمر کې یې یوه ګناه هم نه دی کړې خو داخوشپې کېږي چې دی ماته سوال کوي هغه زه نه قبلوم،نوځکه رانه مرور دی.

حضرت موسی علیه السلام ورته وایې چې ای رب تعالی ﷻ چې دا انسان دتا دومره نیک بنده دی چې په داپنځه سوه کاله عمر کې یې یوه ګناه هم نه دی کړي ،دتا هرحکم ته یې غاړې ایښې ؛نو دا یوسوال خو یې ته هم قبول کړه. خدای پا ک ﷻ ورته وایې چې ته خو دسوال پوښتنه وکړه چې دی څه سوال کوي ؟ حضرت موسی علیه السلام دسوال پوښتنه ورنه وکړه .خدای پاک ﷻ ورته وایې چې دی دا سوال کوي چې ای رب تعالی : زما بدن دومره غټ کړه چې ټول جنهم په ماډک شي اوبل مسلمان جهنم ته لاړ نه شي.

نورب تعالی ﷻ ویلې چې دا سوال یې زه څرنګه قبول کړم.

ګوره دخدای پاک ﷻ بنده دی اوله الله تعالی ﷻ نه مرور دی.

ورونو ! دامرورتوب نه دی دا دوست په دوست ناز کوي.

## دنیکوخلکوپه قبرکې له ملائکوسره مباحثه

په قبرکې یوولي دفن کوي اوبل ولي ته یې خداوندمتعال ﷻ حال معلوموي چې ملائکې دسوال اوځواب له پاره ورتهٔ راغلې ،پوښتنه ورنه کوي چې : من ربک ؟ رب دې څوک دی ؟ دچابنده یې ؟ دا ولي ورته وایې چې له ماڅخه پوښتنه مه کوه ورشه له

خدای پاک ﷻ نه پوښتنه وکړه چې هغه ماشه بولي ؟ که زه زر وارې ووايم چې زه دخدای پاک ﷻ بنده یم خوچې الله تعالی ﷻ مې بندګي قبوله نکړي او ووايې چې بنده مې نه يې ماته څه فائده رسوي چې زه ووايم ،هلته فایده رسوي چې رب تعالی مې بندګي قبوله کړي ،غلامي مې قبوله کړي.

انسان ډېر لوي قیمتي شی ده، انسان له ملائکو ،پیریانوبلکې له ټولوشیانو څخه الله تعالی ﷻ ته زیات محبوب دی ، خوچې انسان ،انسان شي ، بیا خدای پاک ﷻ ته دومره نږدې کیږي چې خدای پاک ﷻ په خپل ځان تعبیر ورنه کوي چې زه ددغه انسان سترګې شم ،زه ددغه انسان لاسونه شم ،زه يې پښې شم.

په حدیث مبارک کې راځي چې دقیامت په ورځ به انسان ته خدای پاک ﷻ ووايي چې زه مریض وم ،تازما پوښتنه ونکړه،دی به ورته ووايې چې ای خدايه ! ته خونه مریض کیږې ، ته خوجسم نه لري، چې زه دتاپوښتنې ته درغلی وای . خدای پاک ﷻ به ورته ووایي چې زما فلانکی دوست مریض و ،ته دهغه پوښتنې ته نه ورغلې، که ورغلی وای نو زه به دې هلته پیداکړی وای .

خدای پاک ﷻ به دې انسان ته ووايې چې ای بنده زه وږی وم ،تا ډوډۍ رانکړه . دی به ورته ووايې چې ای رب تعالی ! ته خو نه وږیږې . وايې زما فلانکی دوست له تانه ډوډۍ وغوښتله که دې ورکړې وای نو زما رضا به تامندلې وای . بیا ورته ووايې چې زه تږی وم ماته دې اوبه رانکړې . دی به بیا ورته ووايې چې ته خونه

تړېږي . خدای پاک ﷻ به ورته ووايي چې زما فلانکی دوست تړی وو که تاهغه ته اوبه ورکړې وای زما رضا به دې مندلې وه .

گورئ وروڼو! انسان دومره عزتمند شو ،رب تعالی ﷻ ته دومره نږدې شو ، چې خدای پاک ﷻ په خپل ځان تعبير ورنه کوي . دومره لوی مقام خدای پاک ﷻ ورته ورکوي چې بل هيڅا ته يې نه دی ورکړی .

ډېر انسانان خدای پا ک ﷻ په ژوند باندې جنت ته داخل کړي لکه د پيغمبرانو عليهم السلام ژوندته وگورو هغوی په ژوند باندې رب تعالی ﷻ جنت ته داخل کړي ، د زنکدن په وخت کې جنت په سترگو ويني ،دومره غټ مقام رب تعالی ﷻ انسان ته ورکړی خوانسان چې انسان شي .

غرض دادی چې له مسلمانانوڅخه خدای پا کﷻ دايمان حقيقت غواړي اودايمان حقيقت چې يو وار په چاکې موجود شو بيا به درب تعالی تجليات دده په وجود کې ښکاره کيږي . بيا به په خپله سينه کې الهي انوار ويني . بيا به په خپل خوراک کې انوار ويني .

## دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله په يوه شپه د ډېرو مسائلو د استنباط د حلالې نفقې له وجې کيږي

حضرت امام احمد بن حنبل ( رحمه الله ) په رئيس الاوليا باندې مشهور و. يوځل دحضرت امام شافعي (رحمه الله ) سره

میلمه شو نو ډېر زر زر یې خوراک کاوه اوډېرې لویې لویې ګولې یې کولې. دامام شافعي (رحمه الله) شاګردانو ته په زړه کې شک وریپیداشو چې حضرت امام احمد بن حنبل (رحمه الله) خو په خلکو کې په رئیس الاولیاء سره مشهور دی او دالله دوستان خو دومره زیات خوراک نه کوي اوده خو دومره زیات خوراک وکړ.

خیر شپه شوه نو حضرت امام احمد بن حنبل (رحمه الله) ته یې د اوداسه له پاره اوبه کیښودې چې که تهجد کوي. سهار چې کله راپورته شو نوهغه اوبه همداسې پاتې دي اودس یې نه دی وریاندې کړی ؛نو دوی وویل چې داڅنګه ولي دی چې دشپې تهجد هم نه کوي؟

سهار حضرت امام شافعي (رحمه الله) ددې له پاره له دنه پوښتنه کوي چې ترڅو دخپلو شاګردانو شک ختم شي. نوورته وایې چې حضرت ! بیګا شپه دې ډېر زیات خوراک وکړ؟ دی ورته وایې چې په رښتیا چې نن شپه مې ډېر زیات خوراک وکړ؛خو دا خوراک دیوې شپې نه و،بلکې دیوې جُمعې خوراک مې وکړڅکه چې په خوراک کې مې دخدای پاک ﷻ انوارات ولیدل. پاکه نفقه وه،ددې وجې نه مې ډېره وخوړله چې زما دبدن غِذا پاکه شي اوپه دې غزا باندې دخدای پاک ﷻ عبادت وکړم. یوه جُمعه بیا نور خوراک نه کوم اوددې پاکې غِزا داسې اثر ووچې ټوله شپه مې خوب نه دی کړی اودخدای پاک ﷻ په عبادت مشغول وم. اود سلهاوو مسائلو استنباط مې وکړ.

نوکله چې په چا کې دایمان حقیقت موجود شي بیا به هرشي کې دخدای پاک ﷻ انوار ویني.

حضرت نبي کریم ﷺ به چې ګوله راپورته کړه ؛نوهغې ګولې به دخدای پاک ﷻ تسبیح ویله.مرې به چې راواخیستله نودده په لاس مبارک کې به یې تسبیح ویله.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین





# (٤٥) مجلس

# دآدب بیـان

قال الله تعالی:

اعوذبالله من الشیطان الرجیم

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَرْفَعُوٓاْ أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ ٱلنَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُواْ لَهُۥ بِٱلْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَٰلُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ﴾

له حضرت نبي کریم ﷺ سره دصحابه کرامو د ژوندکي په هکله خداوندمتعال ﷻ حضرت نبي کریم ﷺ ته فرمايي چې دوی ته ادب وربنيه چې تاسې دحضرت نبي کریم ﷺ سره څرنګه ژوندکي کوي؟

ددې له پاره چې دين ټول آدب دی ددغوخلکو داقيمتي قيمتي عملونه ټول لاړختم نه شي ،ضايع نه شي ځکه رب تعالی ﷻ په خپلو بندګانو باندې ترخپل مور اوپلار (۷۰) اويا وارې زيات مهربانه دی ،نو په هرباب کې ددوی له پاره هغه لار غوره کوي چې په هغه کې ددوی له پاره ډېره ترقي وي .

نو د مجلس آدابونه هم خدای پاک ﷻ حضرت نبي کريم ﷺ ته بيان کړي دي چې له ده مبارک سره به څرنګه مجلس کوئ ؟

له هغو ادابوڅخه ځينې داداب داهم دی چې په رواياتو کې راځي چې تاسې دحضرت نبي کريم ﷺ په مجلس کې په زوره — زوره مه غږيږئ ،خپل اواز دده تر اوازه مه پورته کوئ . ولې ؟ ځکه په دغه کيدای شي ، ده ته تکليف ورسيږي ،دده دخفګان په سبب ،دتاسو ټول عملونه ضائع کړي اوتاسې به خبر هم نه وئ چې زما عمل ضائع ده ،ځان به درته نه معلوميږي خوهلته به حضرت نبي کريم ﷺ ته تکليف رسېدلې وي ،دهغه تکليف په وجه به دتاسې ټول عملونه ضائع شوې وي .

هغه آداب تر نن ورځې پورې لازم دی ،په مسجد نبوي کې چې څوک روضې مطهرې ته ورشي ،هلته به هم دحضرت نبي کريم په جوار ( څنګ ) کې په زوره ، زوره خبرې نه کوي، ادب به کوئ،په ژونداوله مرګ نه وروسته،په حضورکې چې دهغې خپلې بې ادبي په سبب دتاسو اعمال باطليږي .

حضرت ثابت بن قيس ابن شماس ؓ يوصحابي خپل بعې اواز ډېر لوړ و جهيرالصوت، کله يې چې دغه آيت مبارک واوريده نو په کورکې کيناست اوپه زوره ،زوره يې ژړل چې زما خوطبعي غږ لوړ دی ،قصدا بې ادبي نه کوم،داسې نه چې زما ټول مخکې عملونه ضايع شوي وي . ترڅو شپوپورې يې ژړل ،تر دې پورې چې دکور دروازه يې په ځان پسې بنده کړه،بهر نه راووت.

حضرت نبي كريم ﷺ پرې خبر شو بيا يې دی راوغوښت اوپوښتنه يې ځينې وکړه چې داڅو ورځې ولې نه معلومېږې ؟ حضرت ثابت بن قيس ﷺ ورته وايې چې کله داآيت نازل شوی چې دحضرت نبي كريم ﷺ په مخکې به په زوره خبرې نه کوئ ،کنه ټول اعمال به مو ضائع شي . تاسوته معلوم دی چې زما غږ ډېرلوړ دی نوداسې نه چې زما دلوړو خبرو له وجې نه تاسو(حضرت نبي کريم ﷺ) ته ضرر اوتکليف ورسيږي اوټول عمل مې ضائع شي .

حضرت نبي کريم ﷺ ورته وويل چې نه ، ته دهغو خلکو له جملې څخه نه يې .حضرت نبي کريم ﷺ په دې زيری ورکړچې : **(ان تكون حياتك محمودا ان تعيش حميدا وان تموت شهيدا وتدخل الجنت)**.

دتا زندګي به نيکه وي. صفت کړې شوې به وي.اوښه ژوند به تيروې.اومرګ به دې دشهادت وي اوبيا به جنت ته داخلېږې .

حضرت ثابت بن قيس ﷺ ته ددې يو آيت مبارک په وجه چې ده عمل پرې وکړ،ددې ادب درعايت په خاطر خدای پاک ﷻ درې بشارتونه ورکړل .

همدغه زيري اوبشارتونه دده په حق خدای پاک ﷻ رښتيا کړل. کله چې دحضرت ابوبکرصديق ﷺ په زمانه کې دمسيلمة الكذاب سره جنګ شروع شو نو صحابه کرامو ﷺ په اول سرکې شکست وخوړ ؛نو دغه ثابت بن قيس ﷺ اوحضرت ابورافع ﷺ دواړو وويل چې دحضرت نبي کريم ﷺ په زمانه کې خو موږ داسې جنګونه نه کول چې په شاه به راتلو نودواړه دجنګ لومړی کربښې ته ولاړل

اوهلته يې مرچې جوړې کړي اوترهغه جنګيدل ترڅوچې دواړه شهيدان شول .

کله چې شهيدشو نه زغره يې دابشري تقاضا په بنا يو صحابي ورنه واخيسته ؛ نوله شهادت نه وروسته يوصحابي مبارک دجنګ قومندان حضرت خالد بن وليد ﷺته ورغی اوورته ويې ويل چې ماداسې خوب ليدلی چې حضرت ثابت بن قيس راته وايې چې زما زغره فلانکي سړي واخيسته اوپه فلانکي ځای کې يې دکټوې لاندې ايښی دی حضرت خالد ﷺ ته ووايه چې هغه ورنه واخلي اوزما ورثه و ته يې ورورې . اوحضرت ابوبکر صديق ﷺته ووايه چې دفلاني اوفلاني سړيو په مابانديې دومره قرضه دی هغه ورکړه . اوزما فلانکي فلانکي غلامان دي هغه د ماله طرف نه آزاد کړه .

دې صحابي مبارک کله چې حضرت ابوبکر صديقﷺ او حضرت خالد بن وليد ﷺته خوب وويلې نودستې دواړو دهغه په عملو کولو بانديې پيل وکړ. حضرت خالد بن وليد ﷺ هغه ځای ته ورغی اوهغه زغرې يې راواخيستې اودده ورثه و ته يې ورکړي او حضرت ابوبکرصديق ﷺ دده قرضې خلاصې کړي . اوهغه غلامان يې آزاد کړل.

دا ټول دهغه آدب نتيجه اوثمره وه چې دده له مرګ نه وروسته دده په وصيت بانديې دواړو عمل وکړ.

نورخلک چې مړ شي نوپه خوبونوکې خلکو ته دهر څه وايي خو هغه نه عملي کوي خودده خوب دو جليل القدر صحابه کرامو ﷺ

دستې عملي کړ، ځکه چې حضرت نبي کریم ﷺ دده په حق کې پیشنګویي کړې وه.

نوددین ژوند ټول د آدب دی نوشاګردان باید دخپلو استادانو سره د ادب زندګي وکړي ،مریدان دخپلو مشائخوسره د آدب زندګي وکړي ،مقتدیان د خپل امام سره باید د آدب زندګي وکړي اوعوام ورونه باید له خپلو علماء کرامو سره د آدب زندګي وکړي اوکشران باید له خپلو مشرانو سره د آد ب زندګي وکړي ځکه دین ټول آدب دی ځکه خدای پاک ﷻ صحابه کرامو ﷺ ته دمجلس آدب بیانوي، دلارې اورفتار آدب ورته بیان شوې :﴿ لَا تُقَدِّمُواْ بَيۡنَ يَدَيِ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ دحضرت رسول الله ﷺ نه به په لارې هم مخکې نه ځئ.

یوځل له حضرت صدیق اکبر ﷺ نه یوصحابي مخکې روان وو، حضرت نبي کریم ﷺ ورته په قهر شو اوورته ویې ویل چې ته دهغه چانه مخکې روان یې چې هغه دتانه په دنیا اواخرت کې غوره اوبهتر دی.

دعالم اوعزتمن سړې نه به هم په لار کې مخته نه ځئ. صحابه کرام ﷺ دحضرت پیغمبر ﷺ دمجلس ډېر تـږي وویوځل حضرت نبي کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته دولیمې دعوت وکړ نوی واده یې کړی و،دنکاح شپه ده ،بي بي مبارکه هلته یواځې ناسته ده؛نوصحابه کرامو ﷺ خوراک وکړ خوبیا تردېره پورې هغوی ناست .حضرت نبي کریم ﷺ له کمال حیا اوشرم له وجې نه،له ډېر

حلم اوبردباري له وجې نه هيڅ نه وايې ؛ خو د ډېر بوج له وجې نه ځوځله يې دپورته کيدلو هئيت جوړ کړچې کيداى شي دوى هم پورته شي خودوى بيا هم پورته نه شول ؛نوځو ځله بهرته لاړ اوبيرته راغى ، نوخداى پاک ﷻ ايتونه نازل کړل چې حضرت نبي کريم ﷺ له تاسو حيا کوي اوخداى پاک له تاسو نه حيا نه کوي اوحق خبره تاسو ته بيانوي.

نو دوى ته يې ددعوت آدب وروښودل چې کله تاسو دچاکورته ورشئ نود ډوډى له تيارولو مخکې مه ورځئ اوبيا چې کله ډوډى وخورئ نوبيا ډېر هلته مه ايساريږئ بلکې سمدستي خپلوکورونو ته ځئ، حضرت رسول الله ﷺ ته تکليف رسوي. ځکه چې کور دى دکورمشکلات يا څه ضرورت پيداکيږي؛ نوخداى پاک ﷻ حضرت صحابه کرامو ﷺ ته دا آدب وروښود چې مه دومره وختې ورځئ چې ډوډى تياره نوي اوتاسو ورشئ اوبياموچې کله ډوډى وخوړله نوبيا نور مه کېنئ. ځکه چې حضرت رسول الله ﷺ له عباداتو اومعمولاتو څخه وزي.

همدارنګه صحابه کرام ﷺ به ددينې احکامو دزده کړي له پاره حضرت نبي کريم ﷺ ته ډېر زيات ورتلل ،مشورې به يې ورسره کولې ؛نو خداى پاک ﷻ آداب نازل کړل چې کله تاسو حضرت نبي کريم ﷺ ته ورځئ نوله ځان سره څه تحفه هم ورورئ همداسې تش لاس مه ورځئ؛ نو داخبره په ځينو صحابه کرامو ﷺ بوج شوه ، دهرچا وس نه وبيا خداى پاک ﷻ داحکم بيرته منسوخ کړ .خو په نوردينې امورو عمل کوئ ،زکات ورکوئ.

یو ځل ځینې کوچیان نوې مسلمان شوې وو ؛نو دحضرت نبي کریم ﷺ کور ته به ورغلل اوله دروازې دباندې به یې په زوره - زوره نعرې وهلې :﴿ یا محمد اخرج لنا ﴾ نوخدای پاک ﷻ نور آیتونه نازل کړل :﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَآءِ ٱلْحُجُرَٰتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ۞ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا۟ حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ﴾ یعنې هغه کسان چې له دروازې نه بهر آوازونه کوي ،هغوی زیاتره نه پوهیږي اوکچرته دوی صبر وکړي ترڅو چې حضرت نبي کریم ﷺ ورته په خپله را ووزي دابه ددوی له پاره ډېره ښه وي .

نوصحابه کرامو ﷺ ته خدای پاک ﷻ آدب وروښود چې په زوره -زوره چیغې مه وهئ ،بلکې په نرم اوکرارآواز سره ورته غږ کوئ لکه : یارسول الله ! یانبي الله !

حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې :﴿ ادبنی ربی فاحسن تادبی ﴾ ماته خپل رب آدب راکړی او ډېرښه آدب یې راکړی دی .

حضرت نبي کریم ﷺ به چې کوم عمل کاوه نو خدای پاک ﷻ به دهغه ښودنه ورته کوله ،تر دې پورې چې که اجتهادي خطایي به راغله نوهغه به یې هم ورته ویلې چې داسې بیا مه کوه. نوحضرت نبي کریم ﷺ ته خدای پاک ﷻ ادب ورکوي ، صحابه کرامو ﷺ ته دحضرت نبي کریم ﷺ په هکله آدب ورښیي ،ملائکو ته دحضرت آدم علیه السلام په باره کې آدب ورښیي چې حضرت آدم علیه السلام دستاسو استاد شو اوس تاسو له هغه سره د آدب زندګي کوئ.

دفتوا کتابونو لیکلي چې څوک ملا امام ته داووايې چې وخت پوره ده ،مخته شه ؛نوداهم بې ادبي دی . همدغه شان احیاء العلوم هم دشاگرد ،داستاد ،دمرید اوشیخ په مابین کې دغه آدب لیکلی دی.

نن سبا چې هرڅه بې خونده دي ،وجه دادی چې دکلي امام ته په داسې بد نظرگورو لکه دیوچپړاسي په شان. په زیاتره منطقوکې چې امام ته پنځه یازیاتې کمې پیسې ورکوي هغه دعلمیت اوامامت په نسبت نه ورکوي چې دی عالم دی، زموږ امام اومقتدا دی، په لمونځونوکې اقتداء ورپسې کوو،بلکې دیومزدوراو نوکر په صفت یې ورته گوري.

که امام دکلیوالو له اجازې پرته دلمانځه وخت بدل کړنوبیاهم کلیوال خوشکه اوپه غصه وي.

مسئله دادی که دا معلومه وي چې دکلي امام شته بل څوک ددې حق نه لري چې امامت ورکړي بلکې دبل چا لمونځ دامام له اجازې پرته مکروه دی.

که ښه عالم اوشیخ الحدیث راشي اودجومات امام یوکشر طالب وي نودې لوی عالم اوشیخ الحدیث ته ددې کشر طالب اوامام له اجازې پرته دامامت حق نشته .ځکه چې حضرت رسول الله ﷺ آدب ښودلی چې دچا دتصرف په ځای کې به دهغه له اجازې پرته تصرف نه کوي . که هغه اجازه ورته وکړي چې مخته شه نوبیا دې مخکې شي .داسې به نه کوي چې زه شیخ الحدیث یم،دی طالب دی .نوزه حقدار یم.

همدارنګه داهم یومسئله دی چې که یوجومات معلوم مؤذن لري نواقامت به هم هغه وایې اوکه هغه بل چاته اجازه وکړي نوبیا یې کولی شي . اوکه بل چاته یې اجازه نه کوله اودی پرې خفه کیده نوبیا اقامت ویل هم دده حق دی .

یوځل یوصحابه اذان وکړ اوبل صحابي اقامت وویلې حضرت رسول الله ﷺ ورته وویل چې اذان هغه بل کړی اواقامت ته وایې ؟ نه !د اقامت حق هم هغه لري .

نوحضرت رسول الله ﷺ دهرڅه آدب ښودلی دی که موږ ددغو آدابو رعایت وکړو بیا به خدای پاک ﷻ زموږ هرڅه برابر وي .

په موجوده دورکې دغه کمزورې ډېرې دي وجه یې دادی چې بې علمي دی ،دعلماء کرامو سره تعلق نشته .

کله چې زه په اول ځل مرید شوم نو له حضرت انوارالمشائخ (حضرت ارغندی خلیفه صاحب قدس الله سره العزیز) څخه مې داخبره واوریدله چې زه په ټول وخت کې دحضرت صاحب مبارک زیارت ته په دې نیت نه یم ورغلی چې دی له ماسره وظیفه وکړي اویا له ماسره توجه وکړي.ما ویل چې په دې کې زما څه کار دی ،که توجه راته کوي اوکنه په ماباندې ورتګ ضرور دی اوهمدارنګه په ټول وخت کې مې دانه دي ورته ویلې چې ماته وظیفه رابدله کړه.ده مبارک به چې کله وغوښتل نود وظیفې دبدلولو پاره به یې توجه راته وکړه.

الحمدلله دهغې ورځې تردا نن ورځې پورې مایوه خلیفه صاحب ته هم نه دې ویلې چې ماته توجه وکړه .له دغه ځای نه

غزني ته ورغلی یم ،په ختموکې ورسره شریک شوی یم، پنځه شپې مې ورسره کړې دي ؛خو توجه یې نه دی راته کړې اوپه زړه کې هم څه نه دې راتیر شوې چې داتوجه یې ولې نه راته وکړه، ځکه چې هغه ختم کول یا ددوی سره ناسته ټوله توجه دی .

نوشاګردان دې داستاذانو رعایت کوي،دهغوی وختونه دې نه ضائع کوي،بیا به یې په علم کې برکت پیدا کېږي. عوام وروڼه دې دخپلو امامانو،علماء اواستادانو آدب کوي خدای پاک ﷻ به یې عمرنه ضائع کوي.کله ډېر مهم شی له سرې نه په یوه ناچیزه شي باندې پاته شي. حضرت شیخ الحدیث شیرعلي شاه المدني صاحب ویل چې کراچۍ ته روان وم، دجهاز ټک مې کړی و کله چې اړپوټ ته ورننوتم یوشناخته دوست سره مخامخ شوم اوډېر زیات راته ټینګ شو چې چای به راسره چیښې بیا به ځې ماورته وویل چې پرواز ته (۱۵)ملته پاتې دي دچای څېښلو وخت نه دی . خودی په خپله خبره ټینګ ولاړ دی. خیر چای یې راوړ چې یوه پیاله چای موچیښه نو طیارې پرواز وکړ. نو زما وخت یې هم ضائع کړځکه سهار وختې پرواز و خپل ځای ته رسیدلی شوای اوپه دې برسیره څوفیصده روپۍ مې بیا ورکړې چې هغه ټکټ مې لغوه نشي .

نوپه یوه پیاله چای یې دده وخت هم ضائع کړ اوتاوان یې هم ورکړ. له داسې اکرام اوعزت نه څه فایده ؟ ددې په ځای چې ده ته هغه دعا وکړې امکان لري چې زړه یې ورنه خفه شي .

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین

# (٤٦) مجلس

## داولیاء کرامو کرامات او واقعات

ددې له پاره چې له دین اودینداري سره دانسان شوق پیدا شي باید داولیاء اودخدای پاک ﷻ ددوستان واقعات وګوري اویا يې واوري ځکه چې ددوی په واقعاتوکې خدای پاک ﷻ دا اثر ایښی چې دسړي ددین اودینداري سره شوق پیداکېږي اودین ته توجه پیداکېږي.

په دین کې خدای پاک ﷻ څومره عزت ایښی ؟ ددغه دین په برکت سره انسان ته څومره مقام په نصیب کېږي ؟

### حضرت سفینه رضی الله عنه ته زمری لاروښيي اودده ساتنه هم کوي

د انبیاء کرامو علیهم السلام څخه را ورسته دصحابه کرامو رضی الله عنهم زندګي مطالعه کړئ ! داسې صحابه کرام رضی الله عنهم تیر شوي دي لکه حضرت سفینه رضی الله عنه چې په لاره روان و ،لار ورنه غلطه شوه اوپه ځنګله کې پاتې شو، زمری ورته راغی ، زمري ته وایې چې دحضرت رسول الله ﷺ غلام یم زمانه خپل ملګري ورک شوي دي ،ته هم دخدای پاک ﷻ مخلوق يې،دخدای پاک ﷻ ددین خدمت په ما اوتا دواړو باندې فرض دی ،ماته خپل ملګري وښیه .

دا زمري اوو...ي چې دانسان دښمن دی ، کله یې چې دا نومونه واورېدل چې زه دحضرت رسول الله ﷺ غلام یم اوزما نه ملګري ورک شوې دي ؛نو لکه دانسان هغه خپل کورنی سپی ، راغی اوپه پښوکې یې ورته رغړې دعاجزۍ اوانس اوالفت سلسله یې شروع کړه اوبیا یې په خنګ کې منډې کړې چې په کوم طرف باندې مجاهدین تللی و ،دازمری وسره روان شو اوده ته یې رهنمایي کوي اویوطرف بل طرف ته ګوري چې درسول الله ﷺ غلام ده څوک ضرر ورته ونه رسوي . ترهغه دا زمری ورسره نوکرې کوله ترڅویې چې حضرت سفینه ﷺ خپلوملګرو ته ورساوه.

ددغه دین په وجه رب تعالی ﷻ انسان ته حیوانات تابع کړي .

یوځل داسې هم پیښ شوې دي چې یوکس په لار تیرېږي چې ګوري یو ولي دګرمي په موسم کې پروت دی اومار په خپله خوله کې دبابري څانګ نیولی اوپنکی پرې وهي، مچان ورنه شړي. ګورئ مار دانسان دښمن دی ،هلاک کونکی دی ؛خو هغه رب تعالی ﷻ ده ته تابع کړی اوخدمت یې کوي .

داسې ډېرې نمونې موجودې دي چې ددین په واسطه اوبرکت باندې رب تعالی ﷻ انسان ته دومره عزت ورکړی چې حیوانات خو څه کوې چې نباتات یې هم تابع کړې دي . تیږه،ونه ،زمکه داشیان شعور هم نه لري خودازمکه بیا هم دالله تعالی ﷻ دوستان پیژني، دغه غرونه دالله تعالی ﷻ دوستان پیژني، ددغه دین په برکت دغه زمکه اواسمانونه دغه عزتمند انسان پیژني .

## د حضرت سعد بن معاذ ﷛ په وفات عرش ولړزېده

حضرت سعدبن معاذ ﷛ چې کله وفات شو حضرت نبي کريم ﷺ وويل چې دده په مرګ باندې له ډېرې خوشحالي نه عرش عظيم په حرکت راغی چې ماته دالله تعالی ﷻ ديودوست روح را روانه ده. عرش عظيم چې تر(۷) اوو اسمانو اوزمکو لوی دی ؛خوهغه لوی عرش عظيم چې دخدای پاک ﷻ دخصوصي تجلياتو مظهر دی ،دجنت چت دی ،هغه دحضرت رسول الله ﷺ ديوصحابي اودوست په وفات دومره زيات خوشحالېږي چې په حرکت راځي . دا ټول ددغه دين په برکت سره . چې خدای پاک ﷻ دغه انسان دومره عزتمند ورباندې ګرځولی .

## غره ته د حضرت نبي کريم ﷺ خطاب او دهغه له خوا ځواب

يوځل حضرت نبي کريم ﷺ له خپلو دريو يارانوحضرت ابوبکرصديق، حضرت عمرفاروق اوحضرت عثمان غني (رضی الله تعالی عنهم) سره يوځای داحد دغره په يوځنډه چې (صبير) نوميده، ودريدل ؛نوهغه غرله ډېرې خوشحالي نه په حرکت راغی. حضرت رسول الله ﷺ ورته وويل چې :﴿ اهـدء ياصبير اعـليك النبـی والصـديـق والشـهداء ﴾ ای صبيره ! ودرېږه ! په تاباندې يونبي اويو صديق اودوه شهيدان ولاړدي .

مخکې حضرت رسول الله ﷺ دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه اوحضرت عثمان غني رضی الله عنه دشهادت پیشنګویي کوي .څکه چې په جزئي مغیباتو باندې انبیاء کراموا او اولیاء کرامو ته علم ورکوي.

نوغر هم دخدای پاک ﷻ دوست پیژني.

ددغې وجې نه حضرت رسول الله ﷺ په مکه معظمه کې دکفارو دظلم اووحشت نه هجرت ته مجبورشو .په کومه شپه چې دی یوه غر ته پنا وړي ،کله چې وختل هغه غر ورته ګویانه شو چې ای رسول الله ! زمانه کوز شه ! داسې نه چې کفار راشي اوبیا زما په لمن کې تاته تکلیف درکړي . نوزه به بیا دقیامت په ورځ رب تعالی ﷻ ته څه جواب ورکوم؟ ! ،بل مخامخ غر آواز ورته کوي :﴿ الیّ یارسول الله ! ﴾ ماته راشه ای دخدای رسوله ! ،هغه غر بیا فنا ورکوي ،په هغه غارکې چې حضرت رسول الله ﷺ اوصدیق اکبر رضی الله عنه ناست دي یوه کوتره راځي دغارپه خوله کې هګۍ اچوي اوتارکنبړ راځي دستې دغار په خوله کې ځاله جوړوي چې کفار ده ته تکلیف ورنکړي تر څو دامعلومه نه شي چې دلته څوک ننوتلي . ګوره تارکنبړ څومره باریک وجود یې دی خو پدغه کې هم خداوند متعال ﷻ دومره احساس ورکړی چې د ده دوست پیژني . بل طرف ته کبوتره مرغه دی خو دحضرت رسول الله ﷺ خدمت کوي.

نوانسان ددین په برکت خدای پاک ﷻ ته نږدې کېږي اوعزتمند کېږي او همداشان غر، ونه، سمه اوهواره یې ټول پیژني ، دهمدې دین په برکت دښمن ورته مسخر کوي ،حیوانات،

درندګان اوماران د انسان دښمنان دي خو الله تعالی یې ورته تابع ګرځوي اود بیعت مقصود نه دی چې زه به عمل وکړم چې زمری ،مار یانور شیان راته تابع شي بلکې دخدای پاک ﷻ رضا مقصود دی،که چا دخدای پاک ﷻ درضا له پاره کار کاوه نوبیا هغه دده معاملې ورسمه وي. بیا یې الله تعالی ﷻ عزتمند ګرځوي. بیایې خدای پاک ﷻ حفاظت په نصیب کوي.

اوکه چا دخدای پاک ﷻ رضا مطلوب اومقصود نه وه نوبیا په عین لمانځه به ولاړوي عذاب به وریاندې راځي. په عین زکات ،په عین علم کې په عذاب اوتکلیف وي.

دین ډېر عزتمند دی خودواړه شقوق غواړي چې هم به دخدای پاک ﷻ اورسول الله ﷺ اوامرو ته متوجې وي اوهم به له ګناهونوځخه دساتلو کوشش کوي. داځومره خلک چې دخدای پاک ﷻ دوستي ته رسیدلي دي هغه ددغه دین په برکت دده دوستان شوې دي اورب تعالی لوړ مقامونه وریه نصیب کړي دي.

## دبزرګانو په خپلومریدانو نظر وي

حضرت مجدد صاحب (قدس الله سره) په اوداسه لګیا دی خادم اوبه ور اچوي چې ده کوزې ته لاس کړل نو له لاس ور وړلو سره یې الله اکبر نعرې کړې اوکوزه یې وشړله. دی حیران شو چې داځه وشول نوهغه خادم ورنه پوښتنه کوي چې داځه او ولې دې کوزه ووشتله؟ حضرت مجدد صاحب (قدس الله سره) ورته وویل

چې په فلانکۍ دښته کې زما یو مرید را روان دی اوزمری ورته مخته شو اوده زما باطن ته التجا وکړه زه یې خدای پاک ﷻ ته واسطه وګرځولم ؛نوما هغه زمری وویشت . داخادم یې وایې چې زه لیږ شکمن شوم . دېروخت وروسته سړی راغی دهمغې کوزې توټې ور سره وې اوما پوښتنه ورنه وکړه چې داڅه دی ؟ ده راته وویل چې زه په فلانکې دښته کې را روان وم چې زمری راته مخته شو زما دخلاصون بله لار نه وه؛نو ما سوال وکړ چې ای خدایه ! دحضرت مجدد صاحب په واسطه ما له دغه مصیبت نه خلاص کړې . نوغیبي داسې کوزه راغله زمری وریاندې ولګید ،کوزه وریاندې ماته شوه اوزمری وتښتیده اوزه له هغه مصیبت نه خلاص شوم .

نوخدای پاک ﷻ انسان ددین په برکت ،ددین په واسطه بیا دومره عزتمند کوي چې بیا یې تر ډېره ډېره پورې باطني تصروفات جاري وي .

## له مرګه وروسته داولیاء کرامو روحانیت حاضریدل

دحضرت مجدد صاحب ( قدس الله سره ) یومرید لیکي چې کله حضرت مجدد صاحب وفات شو دهغه نه وروسته موږ دماذدیګر په جمعه ودریدلو نودی مبارک هم راغی اوله موږ سره په جمعه ودریده .زه حیران شوم چې نن مو ښخ کړ جنازه مو پرې وکړه اودلته بیا له موږ سره په لمانځه ولاړ دی .اوله ځان سره دا

وایم چې داهسې خیال دی ،ته به خطا وې ؛خو چې هرڅومره خیرشوم په ربنتیا هم دی مبارک و اوتراخیره پورې په لمانځه کې راسره شریک و .

په مسلم شریف کې دمعراج په واقعه کې چې حضرت رسول الله ﷺ وایې چې ماانبیاء علیهم السلام په قبروکې لیدل چې په لمونځوباندې لګیا او مشغول و .

خو دلته اعتراض کېږي چې هغه خو له دنه څوزره کاله مخکې وفات شوی دي ؟ له دېنه دا جواب کېږي چې دوی ته دخدای پاک ﷻ په دین باندې حقیقي ژوندون په نصیب کړی ،هغه پدغه مرګ باندې نه مري، پس دمرګ نه هم دوی دخدای پاک ﷻ عبادت کوي .

ددغه دین په سبب خدای پاک ﷻ دغه انسانان دومره عزتمند کېږي چې له مرګ نه وروسته هم ژوندي دي . قرانکریم هم همدغه خبره کوي : ﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴾ یعنې تاسو هغو خلکو ته چې دخدای پاک ﷻ په لار کې شهیدان شوې دي ،مړه مه وایې بلکې دوی ژوندي دي، دوی ته خدای پاک ﷻ رزق ورکوي .

په دنیاکې موږ جنازې ورباندې کوو،مړه ورته وایو،مال یې ورثه تقسیم کوو ،ښځه یې بل څوک په نکاح کوي خو خدا ی پاک ﷻ ورته ژوندي ویلې اورزق ورکوي .

بل طرف ته ژوندی کافر،په غوږوروغ،په سترګوروغ اوژبه یې روغه ؛خوخدای پاک ﷻ دغه کافر ته مړ ،کوڼ ، ړونداوګونګ

ویلی اوس ظاهري ژوندی دی خو خدای پاک ﷻ ورته مړی ویلې
(يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ) له مسلمان څخه کافر پيداکړي ،مسلمان ژوندی دی ،نوله ژوندي نه مړ پيداشو،سره له دې چې ښه خوراک،چښاک کوي خوخدای پاک ﷻ ورته مړوایې.

حضرت نبي کريم ﷺ په کفارو پورې هم زړه خوړي اونصيحت ورته کوي ،خدای پاک ﷻ ورته وایې چې آیا ته مړیو ته خبرې ور اوروې؟

ګورئ ژوندي کافرانو ته خدای پاک ﷻ مړه وایې څکه چې اصلي اوحقيقي ژوندون په دين باندې راځي ،حقيقي سترګې،غوږونه اوژبه په دين خلاصېږي.

نوکه سړی په دینداري لګیاوي دخدای پاک ﷻ په نزد ژوندی دی ،له مرګ نه وروسته هم رزق ورکوي ،تلاوت کوي.

حضرت نبي کريم ﷺ ته یوصحابي راغی اوورته وایې چې یارسول الله ! په هوار ډاګ مې خيمه ووهله خو دزمکې نه اوس دتلاوت غږ راپورته کېږي تو له شپه يې سورت الملک ویلې حضرت نبي کريم ﷺ ورته وایې چې دا دقبر له عذاب نه خلاصونکی دی ،دانجات ورکونکی سورت دی .دغه سړی په دنیا کې ددغه سورت له تلاوت سره ډېره مینه درلوده،دهغه په برکت دی خدای پاک ﷻ دقبر له عذاب نه خلاص کړی.

اوس نو هغه یو صحابه دزمکې دننه اودابل یې دباندې تلاوت اوري .

نو غرض دادی چې نن سبا د هر مشکل دا څای دی چې د دین سره تعلق نشته ،هغه حقیقي ژوندون او هغه حقیقي سترګې نشته چې په هغه سره دین لیدل کېږي .

## داولیاوو په مجلس انسان له ازلي بدبختي خلاصیدل

حضرت ابو الحسن خرقاني (رحمه الله) دحضرت بازید بسطامي (رحمه الله) په باره کې له حضرت سلطان محمود صاحب نه پوښتنه کوي چې دده څه واقعات راته بیان کړه . هغه ورته وایې چې حضرت بازید بسطامي (رحمه الله) هغه څوک دی چې چا هغه لیدلی وي نو هغه به خدای پاک ﷻ له ازلي بدبختي نه وساتي . هغه ورته وایې چې داڅه وایې ؟ تر پیغمبر ﷺ نه هم دی پورته دی ؟ سره له دې نه چې پیغمبرﷺ کافرانو لیدلی و خو ایمان یې نه و پرې راوړی . دازلي بدبختي نه ،نه وخلاص شوې . اوحضرت بازید بسطامي (رحمه الله) خو یو ولي دی اودهغه په لیدلو دی دازلي بدبختې نه څرنګه خلاصېږي .

حضرت ابو الحسن خرقاني (رحمه الله) ورته وایې چې (حد خود بشناس) پام کوه زیات مه غړېږه . کفارو حضرت رسول الله ﷺ په حقیقي سترګو نه و لیدلی بلکې هغه ته یې دیو یتیم په سترګو کتل ،هغوی دیو عرب په نظر ورته کتل ،هغوی دپیغمبري په

صفت نه ولیدلی ،چا چې پیغمبر ﷺ دپیغمبري په صفت ولید
هغودده دانوارو خوبایي ولیده،بیا یې ځان مال ،اولاد ،مور
اوپلار ټول وربانديې قربان کړل ځکه چې هغودحق سترګې
وربانديې خلاصې شوې ،دده خبرې یې دحق په غوږو اوریدلې ؛نو
خدای پاک ﷻ هغه خلک پدغه دین عاشقان کړه، هغه خلک بیا
دحضرت رسول الله ﷺ چوکیداران و. بیا دده په مخ کې ځان ډال
اوسپر جوړوي ځکه رسول الله ﷺ یې درسول په صفت باندې
لیدلی و. پیژاندلی یې و.

نوځکه ورته وایې چې حضرت بازید بسطامي (رحمه الله) هم
چې څوک په حقیقي سترګو ویني ؛نو خدای پاک ﷻ هغه سړی
دازلي بدبختي نه ساتي.

نوچې څوک دالله تعالی شي اودالله تعالی ﷻ دوست شي بیا
خدای پاک ﷻ ددغه دین په برکت داسې مقام ورنصیب کوي.

همدارنګه حضرت نجم الدین کبرا چې مخکې یې هم مکمله
واقعه تیر شوې ،دومره لوی مقام خدای پاک ورکړی و چې دجذب
په حال کې یوه ورځ را ووت اوپه سپې یې سترګې ولګېدلې نوبیا
به له هغه سپې څخه نور سپې راتاو اوذکر به یې کاو.

په قرانکریم کې مونږ اوتاسې داصحاب کهف واقعه اوریدلې
چې کله یوڅو ځوانانو دظالم بادشاه له وجې هجرت ته مجبور شول
نوپه لارکې یوشپون،چې سپی هم ورسره و، ملګری شو،دوی
کوشش کوې چې سپی وشړي ،ځکه داسې نه چې دده په غپیدلو
سره خلک راباندې خبرشي ؛ خو هغه نه ځي اخیر سپی ورته ګویا

شو چې تاسې دکوم الله په دین هجرت کوئ زه هم دهغه الله تعالی ﷻ ددین په خاطر له تاسې سره ځم . بیا قرانکریم وایې چې دغواصحاب کهفوپه یو غارکې ( ۳۰۹ ) کاله پراته و چې خدای پاک ﷻ یې دژوندیو په شان یو طرف اوبل طرف ته اړوي .دا ددوی کرامت و اودغه کرامت خدای پاک ﷻ ددوی سپې ته هم په نصیب کړی و.

نوچې څوک دخدای پاک شي اودهغه په دین روان شي بیا دهغه دومره مقام په نصیب کېږي چې دده په ملګرتیا سره سپی هم عزت پیداکوي .

نو مطلب داچې ټول عزت په دین کې دی ،حقیقي ژوند په دین کې دی . دخدای پاک ﷻ رضا په دین کې دی . دحضرت نبي کریم ﷺ رضا په دین کې دی . داخرت کامیابي په دین کې دی .دا دین به ټول سړی په ځان عملي کوي ،کوشش به کوي ځان ،لباس بلکې هرڅه به په دین برابر وي .

یوځل صحابه کراموحضرت رسول اللهﷺ ته وویل چې موږ کله په دښتوکې روان یو ،هلته نوره ابادي نه وي یواځې داهل کتابو کورونه وي یا نور لوښې نه وي یواځې ددوی لوښې وي ؛ آیا د دوی په لوښوکې خوراک کوو اوکه نه ؟ حضرت رسول اللهﷺ اول به دنورو لوښو کوشش کوئ که پیداشو خو ښه ،که نه شو پیدانوبیا به دهغودمنځلو ښه کوشش کوئ بیا به خوراک پکې کوئ . حضرت نبي کریم ﷺ دومره احتیاط کوي چې د دوی په لوښوکې خوراک هم نه کوي.

نودهغه مبارک اخلاق،خوی ،عادت اودهغه لباس به په ځانوکې راولو بیا به صحیح اوکامل مسلمانان جوړیږو .

دحضرت رسول الله ﷺ په وخت کې دوه ډلې : مشرکین او اهل کتاب موجود وو. داهل کتابو عادت داو چې ویښتان یې یوطرف ته اوبل طرف ته نه اچول بلکې په مخ به یې راپراته و ،لکه زموږ په علاقوکې دېته څنې وایې. اومشرکینو به په منځ بیلول .

حضرت رسول الله ﷺ پدغو دواړو ډلو کې چې دواړه کفار دي اویوې ډلې څه ناڅه داسماني دین دعوه لرله دهغه مشرکو څخه یې ځان یوې خواته کړ چې اهل کتاب بیا هم داسماني دین پیروي کوي نوله دوی سره مشابهت یوڅه ښه دی نو ویښته به یې همدغسې پریښودل اونه به یې اړول . ددې له پاره چې له مشرکینو څخه مخالفت راشي .

اوبل طرف ته پکې حکمت داو چې اهل کتاب ګوندې زما په مجلس کې ،زما ددین طرف ته یې رغبت پیداشي اواسلام راوړي ؛نو خدای پاک ﷻ ورته وحې وکړه چې دابدبختان ایمان نه راوړي اومامورشو چې ددوی نه مخالفت وکړه، بیا نبي کریم ﷺ د سرمبارک ویښتان واړول اوپه ویښتوکې یې لیکه تیره کړه اودڅنو شکل یې ورنه جوړ کړ،چې ګمنځول ،غوړول اومینځل به یې هم اویوې اوبلې خواته به یې هم اړول .

نوحضرت رسول الله ﷺ په ویښتانوکې هم له کفاروڅخه ځان ساته . په لباس کې یې هم دکفارو څخه ځان ساته . په موزوکې یې هم له کفارو څخه ځان ساته . څومره چې سړی له بې دینه خلکو

څخه لرې کېږي او دینداره خلکوته نږدې کېږي نو خدای پاک ﷻ یې عزتمن کوي.

الله تعالی ﷻ موږ ته په قرانکریم کې ﷺ دسوال طریقه په سورت فاتحه کې راښودلې: ﴿ ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ خدایه ماته سمه اونیغه لار راوښیه. سمه لار کومه ده؟ سمه لار داده چې ﴿ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ﴾ دهغو خلکو لار چې تاخصوصي انعام ورباندې کړی، چې صدیقین، شهداء، صالحین اواولیاء کرام دي ﴿ غَيْرِ ٱلْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾ دهغو خلکو لار مه راښیه چې تا په هغو غضب اولعنتونه کړې دي. اګرکه دشانزول په اعتبار خودیهودو اونصارو په حق کې نازل دی خومفسرین لیکي چې دلته به نیت دټولو ګمراهوډلو کوي.

نوخدای پاک ﷻ موږ ته داښودنه کړې چې هره ورځ به ماته داسوال کوئ چې دنیکوخلکو لار وغواړئ اودبدو خلکو له لارو نه فنا وغواړئ ځکه چې عزت په دین کې دی اوپه دین باندې خلک په عزت کې کېږي اوخدای پاک هم راته وایې چې ددغوعزتمنوخلکو په لار روان شئ اوخدای پاک ﷻ داهم راته ښودلې چې بې عزتي په بې دیني کې دی اوله بې دینه خلکو له لارو څخه ځانونه وساتئ ځکه چې دخدای پاک ﷻ غضبونه ورباندې شوې دي. نوباید چې موږ پدغو خبرو باندې عمل وکړو ځکه اصلاح په عمل سره راځي په تشو اوریدلو سره اصلاح نه راځي. وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین

# (٤٧) مجلس

## د نیکو خلکو سره د تعلق گټې

حضرت ذونون مصري (قدس الله سره) ، چې ډېر لوی شخصیت تیر شوی ، وایي چې کله زه د حج په سفر لاړم هلته د یوه یمني بزرگ نه خبر شوم چې ډېر بهترین شخصیت دی ، خدای پاک پیژندونکی انسان دی ؛ نو چې د حج له ارکانو خلاص شو ، زړه مې وغوښتل چې د هغه یمني بزرگ ملاقات ته ورشم ، د دې لپاره چې زه د هغه نه څه نصیحتونه زده کړم ، هغه معرفت او عشق چې خدای پاک ﷻ د ته ورکړی او یا هغه محبت چې له ده سره دی ، زه هم څه فایده ورنه واخلم .

تول پښخواني علماء کرامو به چې کله دیندراه خلک پیدا کړل او یا به دیوښه عالم او بزرگ نوم واورېده نو د هغه نه به د څه فایدې اخیستولو له پاره د هغه لیدلو ته به یې ځانونه رسول.

حضرت موسی ﷺ ، چې یو جلیل القدر پیغمبر دی ، د تورات په شان لوی اسماني کتاب رب تعالی ﷻ د ته ورکړی لکن کله چې ده په یو مجلس کې په ډېره ښه طریقه سره وعظ او نصیحت وکړ ؛ نو چا پوښتنه ورنه وکړه چې له تانه د زمکې په مخ بل لوی عالم شته ؟ ده ورته وویل چې نه ! ځکه د وخت پیغمبر دی ترټولو خلکو

لوی عالم وي .دخدای پاک ﷻ له طرف ده ته وحې کیږي ؛نوټول خلک له دنه دین زده کوي ؛خوډده داخبره ،چې ترمالوی عالم نشته، خدای پاک ﷻ ته خوښه نه شوه،دستي خدای پاک ﷻ وحې ورته وکړه چې ترتانه یوبل لوی عالم زما بنده شته. په مجمع البحرین کې حضرت خضر علیه السلام یې ورته وښود.نو له موسی علیه السلام سره دستي دهغه دملاقات شوق پیداشو .

پیغمبر و؛ خوچې کله یې داخبره واوریدله چې یوبل لوی عالم شته چې هغه په ډېروشیانو علم لري چې ته په هغوعلم نه لري . نوخدای پاک ﷻ ته یې سوال وکړچې ای خدایه ! زه هغه چیرته اوڅنګه پیداکړم؟ خداوندمتعال ﷻ ورته وایې چې یوماهی درسره واخله . چیرته چې هغه ماهی درنه ورک شو،دغه انسان به هلته بیداکړي، کباب شوی ماهی په بعض روایاتوکې راځي چې نیم یې خوړلی هم و،واخیست کله چې دمجمع البحرین ‹ددوی دریابو دیوځای کیدوځای › خواته دیوې لویې تیږې خواته ورسیدل هلته دهغې په څنګ کې یوه چینه وه ،دهغې په اوبوکې دا اثر و چې کوم مړه شي ته به ورګډې شوې هغه مړی به پرې ژوندی کېده ؛نوهلته دوی داستراحت له پاره دمه وکړه نودهغو اوبو څاڅکې دهغه ماهی سره ولګیدل نوهغه ماهی خدای پاک راژوندی کړ اوپه یوعجیب انداز یې اوبوته ورټوپ کړ او اوبه دتنورنګ په شکل ودریدې اوماهی پکې ننوت .

قیصه ډېره اوږده دی له دېنه زما مطلب دادی چې موسی علیه السلام پیغمبر و؛ خوچې دایې واوریدل چې داسې یوبزرګ بنده

شته چې هغه داسې علم لري چې ماته نشته سمدستې یې خدای پاک ﷻ ته سوال وکړ چې زه به څنګه له هغه سره ملاقات کوم؟

همدارنګ په صحابه کرامو او اولیاء الله به دیو حدیث مبارک دزده کړې لپاره یوه میاشت مزلونه کول. په مدینه منورې کې به یې چې واوریدل چې په شام کې یو صحابي فلانکی حدیث نقل کړی نو شام شریف ته به یې یواځې دهغه یوحدیث لپاره سفرونه کول. نودهغو خلکو سره دعلم شوق وځکه خدای پاک ﷻ کمال ته رسول.

نو دحضرت ذونون مصري (قدس الله) قصه موکوله چې ده هم داواوریدل چې په یمن کې یولوی بزرګ اوعالم دی، دخدای پاک ﷻ یونیه بنده دی نودده سره دملاقات شوق پیداشوه. نوکله چې له حج نه فارغ شوم نوله ماسره دډې نیک بنده په لیدلوکې نورخلک هم ملګري شول، په دې ملګرو کې یوځوان داسې هم و چې دده رنګ به همیشه زېړاو مصیبتونه اوردونه دده په سترګو کې ښکاریدل اوهمیشه به یې په مخ دژړا له وجې اوښکې روانې وې. په لاره به موږ دته زاری وکړي چې ولې دومره بوج په خپل ځان راولي؛ده به هیڅ نه ویل. کله چې یمن ته ورسیدو دهغه نیک اوبزرګ سړې ځای موپیداکړ دروازه موټک ټک کړه. هغه بزرګ اوعالم له کوره راووت. کله چې دی موږ ولید دده له مخ نه دخوف اوویرې علامې ښکاریدلې. دهغه له هیئت نه داسې معلومیده لکه چې اوس له قبر څخه راپورته شوی وي. اول یې له دغه ځوان اوبیا یې له نوروسره سترې مشې وکړه. کله چې په مجلس کې

کیناستلو نودغه ځوان په خبرو شروع ور سره وکړه ځکه دی هم یوعارف اونیک بنده واو اهل الله چې سره یوځای شي نوپه باطن کې سره پیژني اودوی په خپل منځ کې له یوبل نه پوښتنې شروع کړې اودغه ځوان ورته وایې چې ته خدای پاک ﷻ دزړونودمرض معالج اوطبیب پیداکړی یئ . اولیاء دخدای پاک ﷻ له طرف نه دزړونودمرض طبیبان دي ،ددوی په واسطه خدای پاک ﷻ دخلکو زړونه اصلاح کوي ،په زړه کې چې خراب – خراب فکرونه وي نوددغه طریقت په برکت هغه خراب فکرونه دزړه نه لرې کوي تر څو چې په زړه کې له الله تعالی ﷻ سره مینه ، اخلاص اومحبت پیداشي .

کتابونه لیکي چې څوک داولیاء الله مجلس ته ورځي نو ډېر په اخلاص دې ورځي ځکه چې هغه دزړونوجواسیس دي . خدای پاک ﷻ دانسانانو په زړونو باندې علم ورکوي اوله هرچا سره دخپل اخلاص په اندازه معامله کوي نوچې څومره په اخلاص ورځي دومره هغه انسان ته دهغه په مجلس ،زیارت اوملاقات کې ډېرې فایدې رسیږي .

نودغه ځوان ورته وویل چې ته خدای پاک دزړونو طبیب اومعالج پیداکړی یئ،زما په زړه کې یوفکر،غم اودرد ده که چیرې ته زما دزړه دغم علاج وکړې .

هغه بزرګ ورته وایې چې وایه په زړه کې دڅه اشتباه دی نودغه ځوان اولنی پوښتنه داوکړه چې له خدای پاک ﷻ نه ډار،ویره اوخوف له څه نه عبارت دی ؟ بزرګ ورته وویل چې ددغه

داعلامه دی چې څوک په واقع کې له خدای پاک ﷻ نه ډارېږي ؛ نودبل هیڅا څخه نه ډارېږي ،په زړه کې یې یوائې دده ویره وي له مخلوق څخه نه ویرېږي . اودابه یې یقین وي چې هرڅه دخدای پاکﷻ په اختیار اوقدرت کې دي. له نورمخلوق نه به یې تعلق قطعه کېږي اوپه یوالله تعالی ﷻ به یقین جوړېږي چې دهرڅه مالک هغه دی .

موږ چې کله کومه ګناه کوو نو له بندګانو څخه ډارېږو ،چې څوک وونینو دهغه له ډار نه هغه ګناه نه کوو. اصل ډار اوویره له خدای پاک ﷻ نه دی چې دخدای پاک ﷻ نه سړی وډارشي بیا یوه ګناه هم نشي کرلای .

دوهمه پوښتنه دا ورنه کوي چې دایقین په څه معلومېږي چې زه له خدای پاک ﷻ نه ډارېږم ؟ بزرګ ورته وویل چې دایقین هلته پیداکېږي چې له ګناه څخه داسې ځان وساتي لکه مریض چې دمرض په وخت کې له هغو خوراکونو څخه ځان ساتې کوم چې په ده باندې بد لګېږي .

مثلا دیوسړې زیړی ده او له غوړو څخه یې پرهیز دی ؛نو دی وایې چې که ښه خوراکونه وکړم زما تکلیف نورهم زیاتېږي نوهغه ښه خوراکونه پرېږدي اوپه ترخو دواوو باندې صبر وکړي ؛نو ترخه خوراکونه خوري اوښه – ښه کوراکونه پرېږدي .

نوڅوک چې دخدای پاک ﷻ نه ډارېږي، ده ته دایقین پیداکېږي چې زه ربښتیا دخدای پاک ﷻ نه ډارېږم نو علامه یې دادی چې دی په دې مطمئن کېږي چې له ګناهونو داسې وډارشي اوځان وساتي

لکه دمرض له ډېر والي له ویرې پرهیز کوي .ددې خبرې په اوریدلو سره ددغه ځوان له خولې نه چیغه ووتله اوبې هوشه شو.

دریمه پوښتنه کوي چې دخدای پاک ﷻ محبت له څه نه عبارت دی ؟ یوڅوک وایې چې زه له الله تعالی ﷻ سره مینه اومحبت لرم ددغه څه علامه دی ؟

هغه مبارک ورته وایې چې دخدای پاک ﷻ دمحبت علامه داده چې دانسان دالله تعالی ﷻ سره مینه پیداشي نو بیا به په هرڅه کې دخدای پاک ﷻ تجلیات اوانوارښکاریږي . یعنې چې سړی په څه شي عاشق اومیئن شي نوهغه شی همیش دده په خیال کې ګرځي بل څه یې بیا په خیال کې نه راځي .

نودالله تعالی ﷻ دعشق اومحبت علامه داده چې دهغه به ځان ته پام نوي ،اولاد ،ښځې اودنیا ته به یې پام نوي. انوار اوتجلیاب په ده باندې غالب وي همیشه به یې دالله تعالی دیدار اورضا په نظرکې وي . دالله تعالی ﷻ دیدار په دنیاکې عامو انسانانوته نشته ،دپیغمبر په دیدارکې هم اختلاف ده چې ده دمعراج په شپه خدای پاک ﷻ لیدلی اوکنه.

خودامعنی چې دمحبت اوعشق دا علامه دی چې دهغو انوارو اوتجلیات مشاهده به دلته دومره ډېرېږي لکه دی چې خدای پاک ﷻ په سترګووینې ،هرڅه یې دده لپاره وي، هرکار چې کوي مقصود یې دخدای پاک ﷻ رضا وي . من اعطی لله ومنع لله ﴾ که ورکړه کوي نوهم دالله تعالی ﷻ لپاره یې کوي اوکه منع کوي هم دالله تعالی ﷻ لپاره یې کوي . تردې پورې چې خوراک کوي هم

نوددې لپاره یې چې دخداوندمتعال ﷻ عبادت پرې وکړي اوکه خوب کوي هم ؛نوددې لپاره یې کوي چې بیا په ویښه دخدای پاک ﷻ عبادت په ښه طریقه سره وکړي .نوداد خداوندمتعال ﷻ سره دعشق اومحبت علامه ده .

ددې خبرې په اوریدلو سره ددغه ځوان له خولې نه بیا داسې چیغې ووتله چې روح مبارک یې همدغلته قبض شوه اووفات شو.

نوهغه بزرګ وویل چې په رښتیا دخدای پاک ﷻ نه ډاراودالله تعالی سره درښتونې مینې داسې مصداق ده لکه په دغه ځوان کې چې موجود ده.

نوغرض داده چې مونږ اوتاسې په دې قیصو بیانولو کې مطلوب داوي چې زه ریښتیا دخدای پاک ﷻ ډاریدنکی یم نوعلامه یې بیان شوه چې سړی به دګناهونوڅخه پرهیز کوي ،سړی به دخدای پاک ﷻ دامر نه خلاف نه کوي اودعباداتو بندګي چې څومره تکلیفونه وي هغه به برداشت کوي خودیوڅه مقصد لپاره یې برداشت کوي دابه یې یقین وي چې زه پدغه ګرمي کې دخدای پاک ﷻ ددین په خاطر،دالله تعالی ﷻ دحکم دعملي کولو لپاره دجُمعې لمانځه ته ځم نوخدای پاک ﷻ په هر قدم ده ته یوه نیکي ورکوي اویوه ګناه صغیره ورته معاف کوي اویوه درجه ورته لوړوي .

کله چې دکوم انسان سره له خدای پاک ﷻ نه ویره اوډار موجود شو نوهغه به لوږه،تنده،ګرمي ،ساړه اوسفر اوداسې نور تکلیفونه ټول برداشت کوي اوله ټولوخواهشاتوڅخه به ځان ساتي

څکه مریض هلته جوړیږي چې ترخه دوایې وخوري اوله ښو، ښو خوراکوڅخه پرهیز وکړي.

دانسان تقوا په زړه کې دی اوداتقوی هلته قوت پیداکوي، هلته عشق اومحبت پیداکیږي ،انسان هلته الله تعالی ﷻ ته رسیږي چې له ګناهونوڅخه پرهیزوکړي ددې باطني مرضونوعلاج په نسبت سره ظاهري مرضونوته په نسبت ډېرمشکل دی څکه چې که په ظاهري مرض کې پرهیز ونه شي نودبدن تاوان یې دی، بدن ته یې نقصان رسیږي اودنیا یې خرابیږي اوکه په باطني مرضونوکې پرهیز ونه شي نوداخرت تاوان یې دی .دقبر ژندګي یې خرابیږي .اخرت یې خرابیږي ابدي زندګي یې خرابیږي.اوددنیا زندګي اوددنیا نعمتونه،ددنیا خوندونه چې ډېر وي (۲۰- یا ۷۰) کاله دې وي خولکن په دې (۲۰) یا (۷۰)کالوباندې داخرت ژوندبرابریږي، دهغه نتیجه پرې را روانه دی. که په دې (۲۰یا ۷۰) کالوژوندکې انسان پرهیز وکړي اودالله تعالی ﷻ دطاعت اوتکلیفونه یې برداشت کړل ،ترخې ورځې ،ساړه اوګرمي یې برداشت کړل نوپه دې (۲۰یا ۷۰) کلونو باندې هغه ابدي ژوند برابریږي .داسې حقیقي ژوند ورته برابریږي چې بیا به هیڅ مرض نه ورته پیداکیږي . څوک چې جنت ته داخل شي نوهغلته بیا اعلانونه کیږي چې دا داسې ځای دی چې نه بیا څوک په کې مرضیږي ، نه هلته څوک بیاوریږي ،نه بیا هلته څوک مسکین کیږي یعنې هیڅ قسمه تکلیفونه نشته،داسې ژوندون بیا برابریږي چې څومره ښه پرهیز شوی وي دومره ښه قوت اوصحت

اوکه خدانخواسته څومره بدپرهيزي شوې وي همدومره برابرېږي.
بيا انسان هلاکېږي.

اوتاسې بايد خپل وجود ته متوجې شواوکه يوه شيشه موږ خان ته ونيسونو مخ کې معلومېږي ،توږداغ پکې معلومېږي ؛نوچې توږداغ ووينې نودهغه دلرې کولو کوشش کوو ،هغه خيري لرې کوو ،نوداسې دباطن په لحاظ هم بايد خپل ځان ته وګورو چې دخداي پاک ﷻ نه دويرې نښې راپکې شته ؟ دحلالو اوحراموفرق مو کړی؟ دروا اونا روا فرق موکړی اوکنه ؟ له ګناهونوڅخه موځان ساتلی اوکنه ؟ دخداي پاک ﷻ ددين تکليفونه مو برداشت کړې اوکنه ؟ له خداي پاکﷻ سره خودمحبت دعوه کوو داسوچ وکړو چې دخداوندمتعال ﷻ دمحبت څومره نښې په ماکې موجودې دي ؟ اوپه دې محبت کې رښتوني يو؟ حقيقي محبت خو داده چې دمعشوقې پرته به نورټول شيان له ذهن څخه باسي ،هرڅه به دخداي پاک ﷻ درضا لپاره وي ؛نوکله چې څوک دې ته متوجې شي بيا دانسان داصلاح طرف قوي کيږي اواصلاح منځته راځي.

نن سبا بنيادي اوغټ تاوان دادی چې څوک له نيکو،علماء کرامو اوهغه خلکو سره چې هغه ددين ماهرين دي،دزړه معالجين دي ، تعلق نه ساتي ،ناسته ،ولاړه،احترام،آدب داهيڅ نشته. اوکه بيا څوک تعلق ورسره ساتې اوله هغونه څه واوري په هغوعمل نشته .ځکه خو ورځ په ورځ له مشکلاتو سره موږ مخ کېږو ،کنه په هره زمانه کې چې څوک له خپل شان سره تقوی وکړي نوخداي پاک ﷻ يې له هغونه نيک خلک جوړوي .نوکه موږ له علماء

کرامو سره په آدب زندګي وکړو اوددوی خبرې په غور سره واورو ،په زړه کې ځای ورکړو عمل ورباندې وکړو نودغسې امید دی چې لکه هغه چې خدای پاک ﷻ دنیکو خلکو په ملګرتیا اونیکوخلکو په مجلسوباندې اصلاح کول داخرت طرف ته یې توجه اوترقي ورکوله ،زموږ هم خدای پاک ﷻ کارونه جوړکړي.

کتابونه لیکي چې واړه ماشومان داسې دي لکه تنکی لښته چې په کومه خوا یې تاو وې په هغه خواتاویږي داپه هرمجلس کې چې کیني په هغه طرف سړی تاویږي زموږ مجلسونه ټول ددنیاوي معاملاتو اوغلطو- غلطوخواهشاتوکې لګیا وي کشر اومشر موهم په هغه طرف لګیاوي اومشغوله وي . په نړیواله سطحه په نوره دنیاکې دکرکټ لوبه وي، مقابله وي کنکی اوغټې ورباندې خبروي چې نن د فلانکي هیواد له فلانکي هیواد سره مقابله دی یعنې زه له وړو ماشومانو څخه اورم چې داسې الفاظ وایې چې څوک یې په مطلب نه پوهیږي ،فلانکي دومره رنځونه وکړه اورادیوګانې یې غوږوته نیولې وي. ټلوزیون ته ګوري خوځان ورباندې خبروي څکه چې څومره مشران دي اوکشران چې لویږي هغه هم داخبرې زده کوي که موږ داسې یوچې دعلماء مجلسونه په کورکې وکړو ،دمدرسې صفت وکړو؛نوبیا دوړو ذهنونه همغسې جوړیږي.

زموږ بنیادي تاوان دغه دی چې دعلماء سره تعلق نشته اوکه تعلق شته نواخلاص نشته . نیکو مجلسوته چې په کوم نیت ورځي نوخداوندمتعال ﷻ هغه معامله ورسره کوي .

داکارونه اولیاء الله نه کوي بلکې داهرڅه خدای پاک ﷻ کوي
خویوڅوک واسطه وي دیوچاپه واسطه باندې یې کوي.

## اولیاووته چې په کوم نیت ورغلی وي هغسې کیږي

شیخ عبدالقادر جیلاني (قدس الله سره)، چې یومشهور پیران پیرتیرشوی، ده په کمکیتوب کې یې دیو ولي نوم اوریدلی وچې په فلانکي ځای کې ډېر ښه بزرګ دی. نو له کورڅخه دده دلیدلو په نیت روان شو. دوه نفره نورهم ورسره ملګري شول یوله بله یې دسفردهدف پوښتنه وکړه ټولو وویل چې په فلانکي ځای کې ډېرښه بزرګ دی هغه ته ورځو. نوهغه یوته وایې چې ته په څه نیت ورځې؟ هغه ورته وایې چې زه سخت غریب اوپور وړی یم، ددنیا دمشکلاتو سره مخامخ یم که دی دعا راته وکړي اوخدای پاک ﷻ مې له دې مشکلاتو نه خلاص کړي.

بل ملګری یوساینسدان و دهغه نه یې پوښتنه وکړه چې ته دڅه لپاره ورځې؟ هغه ورته وویل چې زه یې تجربه کوم چې رښتیا په کې څه کمالات شته اوکنه؟

اوحضرت پیران پیر صاحب په دې وخت کې ماشوم هلک دی، دده نه یې پوښتنه وکړه چې ته په څه نیت ورځې؟ دی مبارک ورته وایې چې یواځې په دې نیت ورځم چې هغه دخدای پاک ﷻ یو نیک بنده دی، دخدای پاک ﷻ دوست دی. چې دده په دیدار

دده په مجلس له مانه خدای پاک ﷻ راضي شي اودده نه دين زده کړم اوخدای پاک ﷻ رضا راته پيداشي.

کله چې درې واړه ملګري ورغلل کتاب ليکي چې کوم ددنيا په نيت ورغلی وهغه ته يې وويل چې داسې معلومېږي چې دسرو زرو په صندوق ناست يې. اوچې دتجربې لپاره ورغلی و هغه ته يې وويل چې داسې معلومېږي چې کافربه له دنيا څخه تيرشي اوحضرت پيران پيرصاحب مبارک ته يې وويل چې داسې معلومېږي چې يووخت کې به داسې وي چې په بغدادکې به ته تقريرکوې او وايې به چې زما قدم داولياء په ورميږو دی اواولياء به وايې چې دستاقدم زموږ په سترګو دی.

نو دخدای پاک ﷻ کړو ته ګوره چې دده پيشنګويي ددريو واړو په هکله همدغسې شوه لکه دغه نيک بنده چې ورته ويلې و. هغه مسکين خدای پاک ﷻ مالداره کړ. اوهغه سائنسدان دهارون الرشيد په وخت کې دروم سفير مقررشو اوهلته دروم بادشاه په لور مئين شو نودهغې نه يې د واده مطالبه وکړه هغې ورته وويل چې زموږ اوتاسې په دين کې فرق دی موږ اهل کتاب يو اوتاسې مسلمان يئ، زموږ اوتاسې نکاح نه کېږي. ده ورته وويل چې زه به خپل دين پرېږدم اودهغې نکاح له پاره کافر شو.

اوحضرت پيران پيرصاحب يووخت کې په بغداد کې تقرير کوي اوبيا وايې چې زماداسې حالات ده چې داولياء په ورميږو زما قدم دی اودهغه په مجلس کې اولياء ناست دي هغه ورته وايې چې دتا قدم زموږ په سترګو ده څکه کتاب ليکي چې:

گفتۂ اوگفتۂ الله بود ۔ گرچه از حلقوم عبدالله بود

دده ویل ،ویل دالله دي اګرکه ظاهرا دیوبنده له خولې څخه ویل کېږي. ځکه چې ده ته دالله تعالی ﷻ له طرفه الهام وي.

نو چې اول کوم ځای ته ورځو نوهلته به نیت دالله تعالیﷻ درضا کوو. ما په خپله ډېر خلک لیدلي اوتجربه کړې مي دي چې له مشائخو سره تعلق له هغوی نه وظیفه ،ناسته او ولاړه ددې له پاره کوي چې دنیاوې کاروبار مې برابر شي اوځوک بیا داسې وي چې له مشائخوسره سره ددې لپاره تعلق ساتې چې تجربه کوي یې چې څه پکې شته اوکنه ؛نوځان ورته غټ سړی ښکاریږي ،دهغومعلومات کوي. اوبعضې بیا خاص دخدای پاک ﷻ درضا لپاره ورځي ،که ددنیا په نیت ځوک دین کوي ،دنیایې هم تباکېږي اواخرت یې هم تباده. که ځوک وظیفه پدغه نیت اخلي .که ځوک دنیکوخلکو مجلس ته پدغه نیت ورځي چې دنیا مې جوړه شي نودنیایې هم تباده اواخرت یې تبادی . په فاسدو غرضونو ورځي نودنیا یې هم تباکېږي اواخرت یې هم.

نودعلماء اونیکو خلکو مجلس ته چې سړی ورځي خاص دخدای پاک ﷻ درضا لپاره دې ورځي.

## دبزرګانو امتحانول درسوایي سبب ګرځي

د احمد ضیاء خلیفه صاحب یومرید راته قیصه کوله چې په زنخان کې چې دی مدرس و نوپه ختم کې ماذ دیګر یوسړی جذب

شو او ډېر زیات پورته – پورته کیده . خو وروسته بیا معلومه شوه
چې هغه سړی مرید نه و ،په خپله یې اقرار وکړ چې په دې نیت
راغلی وم چې ما اوریدلې و چې دخلیفه صاحب په مجلس کې ډېر
جذب وي ،ماوویل چې راشه معلومات وکړه چې رښتیاهم جذب
شته اوکه نه ؟ خو په هغه مجلس کې بیا داسې کیفیت ورباندې
راغی چې نږدې مړو ،ځان یې نشوای تم کولای .

نوسړی چې دعلماء مجلس ته ورځي په سم نیت دې ورځي چې
څومره ښهٔ نیت وي خدای پاک ﷻ یې دغومره ښه کارجوړوي .

دهمیش لپاره چې دلرې لرې نه خلک راځي دهغو دزړه
دتسکین لپاره داخبره کوو چې څومره سړی لرې ځای ته ځي چې
په صحیح نیت ولاړشي دایوقدم یې هم خدای پاکﷻ نه ضائع
کوي بلکې دهرقدم په بدل کې یوه نیکي ورکوي ،الله تعالی یې
ګناه معاف کوي،الله تعالی ﷻ یې درجې لوړوي .داجومات که
سړی سوچ وکړي په نسبت نورو جوماتو ته داسې جومات نه دی
چې یواځې لمونځ په کې کېږي بلکې له جومات سره سره مدرسه
هم ده دلته علماء کرام ،دلته طالبان دي اودسهار نه تربیګا.له
بېګانه ترسهارپورې دنبي کریم ﷺ احادیث مبارکه یا بیانیږي
یایې مطالعه کېږي ،قرانکریم یا تلاوت کېږي اویایې مطالعه
کېږي نوداځای له ډېروځایونوفرق لري چې په یوځای کې یوڅوک
دکومې رتبې سړی وخت تیرکړي هغه ځای په نورو ځایونوباندې
دومره شرافت پیداکوي لکه خپله چې دهغه شخص څومره مرتبه
اوشرافت وي .په بخاري شریف کې راځي چې دمدینې منورې

اوکعبې شریفې دلارو په اوږدوکې جوماتونه جوړ شوې په بعضونقشوکې به هم تاسې لیدلي وي حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دغه سلسله بیانوي دهرځای نوم اخلي ،حضرت نبي کریم ﷺ به چې دمدینې منورې نه مکې معظمې ته روان و دماسپښین لمونځ یې په فلانکې ځای کې کړی .دماذدیګریې په فلانکې ځای کې کړی دماښام یې په فلانکې ځای کې کړی. شپه یې په فلانکې ځای کې تیرکړه وه.دغرمې دخوب لپاره یې په فلانکې ځای کې اړولي و، تردې پورې چې په هغه ځای به یې نښانه جوړه وه،اوچې بل وخت به بیا دی روان و اوحضرت رسول کریم ﷺپه کوم ځای کې اړولي و، که به سترې واوکه به نه و،که به ضرورت و اوکه به نه و،خوده به هغلته اړول .اودلمانځه له پاره به یې هم کوشش کاوه اوهغه ځای ته به کوشش کاو چې په هغه ځای حضرت رسول الله ﷺ لمونځ کړی و.

دارنګه نور ائمه کرامو هم داسې کړې دي . اودایې ولې کړي ؟ په بخاري شریف کې احادیث مبارکه راځي چې دوی په دې پوهیدو چې په کوم ځای حضرت نبي کریم ﷺ اړولي اوپه کوم ځای کې حضرت نبي کریم ﷺ لمونځ کړی . داځای ترټولو ځایونو برکتناک دی ،په هغه ځای کې دده په نفس ناستې خدای پاک ﷻ برکت پیداکوي ،دده په لمانځه هغلته برکت پیداکوي،نودوی به هلته لمونځ کاوه ،ددغه امید لپاره چې دلته نبي کریم ﷺ لمونځ کړی ،چې زه یې هم وکړم.چې زما لمونځ قبول شي ،دلته حضرت نبي کریم ﷺ دعا کړې ،چې زما دعاهم قبوله شي.

نوچې په کوم ځای کې دحضرت نبي کریم ﷺ احادیث ویل کېږي .موږنه،طالب نه،ملانه ،دحضرت نبي کریم ﷺ په احادیثوکې برکت دی . په قرانکریم کې برکت دی .دفقهې په کتابوکې برکت دی،دمذهب په کتابونوکې برکت دی، نوپه کومو ځایونوکې چې ددغوکتابونودرس اوتدریس کېږي ؛نوپه هغو ځایونوباندې دخدای پاک ﷻ رحمتونه نازلیږي ،هغه ځای له نورو ځایونوبرکتمندګرځي ؛نوبیا په داسې ځایونوکې ددعا دقبلیدو، دلمانځه دقبلیدواودنفس اصلاح ښه کېږي الحمد لله که څوک فکر وکړي نواثر یې هم ښکاریږي .

که څو- څوواري یوڅوک یونیک مجلس ته ورشي؛نودخدای پاک ﷻ په رحم سره،دهغونیکو ځایونوپه برکت سره رب تعالی ﷻ به تحول اوبدلون پکې راولي،موږ ګورو چې زموږ ځوانان ورځ په ورځ ږیري پریږدي ،دېرملګري زموږ په ختمونوکې شریک کېږي ،دېرملګري سره له دې چې امیان دي داحادیثوپه کتابونو نه پوهیږي خوبیاهم کتابونه ته کېني،معلومیږي چې جذبه پیدا شوې ده،دافکرپیدا شوی چې دلته یوساعت څوک کیني نو په زړه کې یې خدای پاک ﷻ سکون اواطمنان پیدا کوي .

نوکه یوڅوک نیکو مجلسوکې په ښه نیت، دېر- دېر شریکېږي ؛نوالله تعالی ﷻ اثرپکې پیدا کوي،دانسان په زړه کې تحول راځي، بدلون راځي،بیادګناه په ځای دنیکي په طرف دسړي شوق پیدا کېږي .

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

# (٤٨) مجلس

## د نیک عمل فایدې او د دنیا بدوالی

حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: ﴿ الدنیا مزرعة الاخرة ﴾ دنیا داخرت کرونده دی. ددغه عمل فایده، کوم تکلیفونه سړی په دنیاکې تیرکړي په آخرت کې خو خود شتهٔ په قرانکریم کې ،په احادیثو کې وعدې دي خودنیکو اعمالو په واسطه په مخکې مجلسونوکې (په حدیث داصحاب الغارکې) بیان شوې دي.

د دنیا لپاره موږ څومره ذلالتونه برداشت کوو،څومره تکلیفونه برداشت کوو، خوخدای پاک عالم دی چې پدغه دنیا باندې به موږ ته څومره سزاګانې راکول کېږي . لکه په یوروایت کې راځي چې دهغې دنیاچې چا یې حقوق نه وي اداء کړي ، دقیامت په ورځ به له دغې دنیانه مارجوړیږي اوله غاړې به یې تاووي اوپه یوچوخاختي اوبل چوخاختي به یې چیچې اوورته وایې به چې زه دتاهغه دنیا یم چې تادېرولم.

## دد نیا دګټلوله پاره له قبرونو څخه مړي ووېستل شول

دنیادومره ذلیل شی دی چې موږ یې له دومره ذلالت سره مخامخ کړې یو چې یونفرقیصه راته کوله چې په کابل کې دمسلمانانو هدیره دی او دامریکایانو مشینو هغه ځای پرې زور

وي اودغه افغانان ،دهمدغه ظفرآباد خلک هغلته په موټروکې هغه خاوري وړي اوپه دښتوکې يې اچوي اويا يې دچاپه کوروکې زورځايونه پرې پرانه کوي . ده راته ويلې چې يوداسې قبر هم رالوځ شو چې جنګی وه (والله اعلم) چې شهيده شوې وه دشهادت په وجه يې دخپلو جامو سره خښه کړې وه اوکه به څه وجه وه.خودسروجامو سره را ووتله اوبيا يې کورنی ورته راغله اوخپل کور ته يې وړې وړه.

اوس چې فکروکړو چې دغه زموږ مسلمانان دي اوله مسلماني سره ،دافغانيت سره بياهم هديره لوټوي خودنياګټې .دمړې بې حرمتي کوي خودنياګټې.

دنيا دومره ذليله شی ده چې دپلارهم بيابې عزتي کوي ،که ددنيا محبت يوار دچا زړه ته کوزشي دپلار هم بيا پرواته کوي، دمورهم قدر نه کوي ،بيا داهل اودناموس هم قدرنه پيژني ؛نود دنيا په وجه په دنيا کې هم ذليله وي اوپه اخرت کې ذليله وي .که هرڅومره يې په حلاله طريقه وګټې اوبيا يې حقوق هم اداء کړي،اومصرف يې هم په ښه ځايونوکې وکړي ؛خودقيامت په ورځ به مسکينان چې نيک عمل يې کړی وي ددنيا د ورځو په اندازه پنځه سوه کاله مخکې جنت ته داخليږي .

په صحابه کراموکې يوصحابي ﷺ مريض دی .نورصحابه کرام ﷺ يې پوښتنې ته ورغلل ؛خودی ژاړي . هغوی پوښتنه ترينه کوي چې غټ سړی يې ولې دمرض له تکليف نه ژاړې ؟ دی ورته وايې چې په دې نه ژاړم چې تکليف اومرض راباندې راغلی .په دې ژاړم

چې حضرت رسول الله ﷺ چې له دنیاڅخه رحلت کاوه نومایوه روپۍ نه درلود اوس مې دکوټې په کونج کې څوزره روپۍ پرتې دي.

## دحضرت نبي کریمﷺ د فقر واقعه

دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه نوره قیصه اوږده دی دلته یې کمه بیانوم :اهل بیت دحضرت رسول الله ﷺ نه دزیاتې نفقې غوښتنه کوله ،څوک یې نه ورپرېښودل وروسته یې ده ته اجازه وکړه ،دهغو خبرونه وروسته وایې چې حضرت نبي کریم ﷺ په یوکټ باندې پروت و چې هغه صرف مزری وبل شی نه و ،هغه مزری یې په ډډو کې ننوتلی و اوپه ټوله کوټه کې مې چې وکتل درې پوستکې څړیدل پدغو به دوی ناسته، اوخوب هم کاوه. ما حضرت رسول الله ﷺ وویل چې یارسول الله ! ته دعا وکړه چې په موږباندې خدای پاک ﷻ اسانتیا راولي . کسری اوقیصر سره له دې چې کفار دي خو خدای پاک ﷻ دوی ته دومره عزت ورکړی اوموږ مسلمانان یو اوزموږ دپیغمبر ﷺ په کورکې یوبستره هم نه شته. ده مبارک راته وویل چې یا عمره! ته هم داخیال کوې په دې نه یې راضي چې خدای پاک ﷻ دوی ته دنیا ورکړې موږ اوتاسوته یې اخرت راکړی .

## حضرت نبي کريم ﷺ خپلې لورته د مال دولت په ځای تسبيحات ورښيي

دحضرت رسول الله ﷺ لورمبارکه حضرت بي بي فاطمه ؓ چې دهغې ميچنې غله ميدوله لاس مبارک يې تناکې شول تناکې يې وچاودي .خبره شوه چې حضرت نبي کريم ﷺ ته دغنيمت ځ غلامان راغلي دي نوکورته ورغله چې يوه ښځه منځه راکړه چې زما دکور خدمت کوي . کله چې ورغله حضرت رسول الله ﷺ په کورکې نه و ،ام المؤمنين عائشې صديقې ؓ ته يې وويل چې که حضرت رسول الله ﷺ راغی دما له طرفه داسوال ورته وکړه چې زه دکور دخدمت نه ډېره تنګه يم ،لاسونه مې تناکې شو. دحضرت رسول الله ﷺ لور ده. کتابونه ليکي چې په پل صراط چې اول کس تيرېږي نوهغه به حضرت رسول الله ﷺ وي اوبيا به دده مبارک لور وي اوټول مخلوق ته به له خدای پاک ﷻ نه امر کېږي چې دحضرت لور مبارکه را روانه ده سترګې کته کړئ دهغې لاسونه مبارک تناکې اوچاودلې دي .

دحضرت رسول الله ﷺ لورمبارکه ده ،دغنيمت له مال نه يوخادم غواړي او ام المؤمنين ته يې حال ووايه اودا مبارکه بيرته کور ته ولاړه کله چې بيګاه شو حضرت رسول الله ﷺ کورته راغی ام المؤمنين ؓ ورته وويل چې بي بي فاطمه ؓ راغلې وه اويوخادمه يې غوښتله .

حضرت علي ﷺ وايي چې حضرت رسول الله ﷺ زموږ کورته راغی زه اوبې بې فاطمه دواړه جگ شولو اوراته ويې ويل چې مه جگېږئ اوراغی زموږ دواړو په مابين کې کيناست او ويې ويل چې تاسو زما کورته راغلې وئ اوخادم موغوښت زه تاسې ته له دې ښه شی در ونه ښيم .ماخوستن چې څملئ نو (۳۳) وارې سبحان الله او(۳۳) وارې الحمدلله او(۳۴) وارې الله اکبر وايئ ،لکه نن سبا يې چې موږ له هرلمانځه شاته وايو دا دتاسو له پاره ترډېرو غلامان بهتره ده .

که دنيا بهتره وای نودخپلې عزتمنې لور لپاره به يې غوره کړې وه ،دذکر تعليم ورته کوي چې دا دتاسې له پاره بهتره دی .

نوغرض دادی چې داسې نه دی چې داخلک وايې چې په دنيا پسې غرېږې اوپه خپله يې جبونه ورنه ډک وي خوپدغه دنيا چې په سم نيت استعمال شي دجنت انعامات پيدا کېږي .

موږ وايو چې دنيادې گټې خودومره ذلت دې نه پرې برداشت کوې چې ددنيا په سبب مړې هم راباسئ ، ددنيا په سبب لمونځونه هم پرېږدئ ، ددنيا له وجې جمعه هم پرېږدئ . ددنيا له وجې موراوپلارهم ناراضه کړئ ،ددنيا په سبب خدای پاکِ اورسول الله ﷺ هم ناراضا کړئ .

قسم په خدای پاک چې دايوساعت ناسته په مجلسِ ذکر کې خو چې په اخلاص وي ددنيا تر بادشاهي اوټولو نعمتونوبهتره ده. اوکه په هغوټولوکې دومره خوند وي لکه دايو ساعت چې دخدای پاک ﷻ په ذکر اودهغه په عبادت تيرېږي . ځکه دنيا اوبادشاهي

اونعمتونه تول ختمیږي خو دغه دذکر مجلسونه ،دغه ژړاوي بیا نه ختمیږي دا داخرت سرمایه دی.

نوداخرت طرف ته توجه پکار دی بیا خدای پاک ﷻ مهربانه ده دغه دنیا موهم بیا خدای پاک ﷻ برابروي . په حدیث شریف کې راځي کله چې خدای پاک ﷻ دنیا پیدا کړه نوبیا یې دغې دنیا ته وویل چې چا دماخدمت کاوه ای دنیا ته دده خادمه شه! اوچاچې دتا خدمت کاوه،دځان مزدور ترجوړ کړه نوچې ددنیا ځان مزدور کوو دالله تعالی ﷻ باید ځان مزدور کړو چې دالله تعالی ﷻ بندګي مختاره کړو دغه دنیا به موهم خدای پاک برابروي.

## مَنْ كَانَ لِلّٰهِ كَانَ اللّٰهُ لَهٗ

نو چې فکر وکړو داجناب احمد ضیا خلیفه صاحب ددنیا دګټې یې په ظاهري اسبابو کې څه برخه نشته خودخدای پاک ﷻ دانعاماتو سړی وګوري نوحیران شي یوځل موږ شپه اوورځ ورسره تیرکړه په هر وار یې میلمانه شوې یو دسهار په چای کې تولو میلمنو ته کوچ ،ملائي دشیدو نوی پیروی اومربا هرشی موجود وي . خدای پاک ﷻ یې دخلکو زړونو ته وراچوي چې له ده سره کومک وکړي . څوچې دالله تعالی ﷻ شونوالله تعالی ﷻ دده کیږي . دغه دنیا خدای پاک ﷻ له موږ نه ده ته ښه ورکوي خوده خدای پاک ﷻ نیولی ،دالله تعالی ﷻ دین یې نیولی ،ځان یې الله تعالی ﷻ ته سپارلی خدای پاک ﷻ یې دنیا هم برابره کړې دی نوداسې نه

دی چې په دین باندې د سړي له لاسه دنیا وزي . څومره چې سړی په دین باندې شه لاس ونیسي دومره یې خدای پاک ﷻ دنیا هم برابر وي خو داسې یې بیا برابروي چې اخرت یې نه ور خرابوي .
ماځو وارې لیدلې روپۍ پیداکړي دستې یې په مسکینانو باندې تقسیم کړي .
غرض دادی چې ددین لوری ونیسئ نوددنیا لوری به مو په خپله برابر شي اوپه داسې طریقه به یې دربرابروي چې اخرت به مونه پرې خرابېږي ، که نوي په دنیا اخرت خرابېږي چې څومره ډېرېږي خدای پاک وایې چې زه چاته دنیا ورډېره کړم نودی دې داخیال نه کوي چې دا دده لپاره خیر دی . یا عزت ورکړم نودی دې دانه وایې چې دازما لپاره خیردی څکه کله داسې وي چې خدای پاک ﷻ یې په قرار قرار غرق وي اودعذاب سبب یې ورته ګرځوي څکه چې دنیاډېره شوه نودستې یې په ګناهونو ګرفتارکړي ، تلویزون په کور کې کېږي،ډش انتن پورته کړي نو لمونځ پاته شې ،جمعه پاتې شي اوپه لهو لعب شروع وکړي ،له مسلمان سره دوکه شروع کړي، درواغ شروع کړي په راکړه ورکړه کې قسمونه شروع کړي ؛نو ورځ په ورځ به دخدای پاک ﷻ نه لرې کېږي . نوپه اصل ذات کې خبیث شي ده څکه ترمسلمانانو نه کفاروته ډېره ورکوي.
نو دنیا دعزت شی دی . ډېره دې شي خو چې په صحیح چوکاټ کې وي . اوهلته په صحیح چوکاټ کې ده چې دین پرې خراب نه شي ،که دین پرې خراب شونوبیا دا دنیا دذلت سبب دی

،درسوایي سبب دی ،دانسان اخرت پرې خرابېږي اوپه دنیاکې هم
پرې بې عزته کېږي اوپه اخرت کې یې هم بې عزته کوي.

(اللهم احفظنا من الذلة)

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا
ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین





# (۴۹) مجلس

## په خپل عمل باید مغروره نشو

دنیکه بخته اوبدبخته بیان مخکې هم تیرشوی دلته یواځې ددواړو یوه علامه بیانور هغه داچې نیکبخته سړې ته خپل عمل کم ښکاریږي اوبدبخته سړي په خپل عمل مغرورکېږي اونیک بخته که هرڅومره ډېر عملونه وکړي بیاهم کم ورته معلومېږي .ددې بنیادي اواصل وجه دادی چې له شیطان ،چې دانسان لوی دښمن دی ، په هیڅ وخت کې غافل نه شي .شیطان هروخت کوشش کوي چې یاخوانسان نیک عمل ته پرې نه ږدي یایې که نیک عمل کړی وي بیرته یې په یوه طریقه ورختم کړي ؛نوددې وجې نه کله سړی نیک عمل کړی وي لکن بیرته عجب او ریا پکې پیداشوې وي ،ځان لوی ورته ښکاره شي نوهغه مخکې اعمال یې ټول لاړاوضائع شي.

## حضرت عمر ؓ خپل زیات عمل څومره کم ګڼي

حضرت عمر فاروق ؓ دمرض موت په حالت کې، چې کله هغه بدبخته غلام دسهار په لمانځه کې په خنجروواهه ،دسخت ضعف په حالت کې حضرت ابن عباس ؓ ورته راغی اوده ته وایې چې

ولې دومره فریاد کوې حضرت نبي کریم ﷺ چې له دنیانه رخصت کیده نو دتا څخه راضي و. حضرت صدیق اکبر ؓ چې له دنیاڅخه رخصت کیده نوهغه هم له تا څخه راضي و ، اوله هغوی نه وروسته له صحابه کرامو ؓ سره هم تاداسې اعمال کړي چې هغوی ټول له تانه راضي دي ؛نوژاړې ولې ؟

نوحضرت عمرفاروق ؓ ورته وایې چې له حضرت نبي کریم ﷺ سره ښه ژوندون تیرول اودهغه رضا کیدل دادخدای پاک ﷻ احسان اومهرباني وه. له حضرت ابوبکرصدیق ؓ سره ښه ژوندون اودهغه له مانه خوشحالتیا داالله تعالی ﷻ رحم و په ماباندې. له دې نه وروسته چې ما څومره اعمال کړي اوڅه باندې لس کاله حکومت مې کړی دا ټول دخداوندمتعال ﷻ فضل اومهرباني وه.

لکن حضرت عمر ؓ ورته وایې چې له صدیق اکبر ؓ نه ورسته ددغه ژوندون ثواب نه غواړم اودا امید لرم چې دعذاب نه به مې خلاص کړي.

ددنیا زیاتره برخې ته دده په خلافت کې اسلام رسیدلی دی خوده ته دا اعمال هیڅ نه ښکاره کیدل. دا دنیا په اسلام باندې ده روښانه کړه لکن دی بیاهم وایې چې هغه دحضرت نبي کریم ﷺ دوخت ژوند ته زما امید شته ،دصدیق اکبر ؓدزمانې ژوندون ته زما امید شته اوله دوی نه وروسته ژوند ته زما امید نشته اوله عذاب نه یې داریږم چې عذاب رانکړي ،ثواب یې نه غواړم.

هغه لوی لوی صحابه کرام ؓ د دومره لوی لوی خدمتونو باوجود ،دخدای پاک ﷻ نه داسې داریږي چې داسې نه زموږ په

اعمالو کې عجب اولویې ښکاره شي نو وایې چې د عذاب نه مودې خدای پاک ﷻ خلاص کړي ،ثواب یې نه غواړي.

اودنیا په هروخت کې امتحان دی په یوه حال کې هم شیطان سړی نه پریږدي ،ددنیا ترقي که په سړې کې راځې هم دا خلک دي چې نه غافله کېږي چې په دنیاکې ورځ په ورځ په ځاکې آزادي اوترقي راځي چې ددوی دافکر شي چې موږ خدای پاک ﷻ ته محبوب یوددغې وجې نه الله تعالی ﷻ موږ ته ډېره دنیا راکوي نوغافل شي ،داخرت ډار یې دزړه نه ووځي اوکه په دین کې ځاترقي کوله هغه دې هم نه غافله کېږي چې ووایې زه طالب وم ملاشوم شیخ الحدیث شوم،مدرس شوم بس ماوګټله نوزما نه به دغه منصب له لاسه نه وځي. صحابه کرام ﷺ اوتابعین کرام اوائمه کرام ډاریدل په هروخت کې باید سړی په ډارکې وي چې شیطان زموږ لارې ونه وهي.

اوکه څوک په دنیاکې غافله شي نوخدای پاک ﷻ په ده امتحان راولي ،ډېر داسې خلک چې ددین په لار کې دومره ترقي ته رسیدلې چې مستجاب الدعوات و،خدای پاک ﷻ یې هره دعا قبلوله لکن خدای پاک ﷻ مودې وساتې په اخروخت کې له دنیاڅخه کافر تیرنه شو؟

## دبلعم بن باعورله عبرت ډکه واقعه

بلعم بن باعور په بنې اسرائیلو کې یومشهورمستجاب الدعوات سړی تیرشوی په یو وخت کې حضرت موسی علیه السلام له بنې

اسرائیلو سره دجنګ او حملې اراده وکړه ؛نو دهغه ځای کفار بلعم بن باعور ته ورغلل چې دومره دنیا به درکړو خدای پاک ﷻ ته دعا وکړه چې موسی علیه السلام اودده قوم ته شکست ورکړي اوپه موږ رانه شي. ده ورته وویل چې زه څنګه سوال وکړم هغه خو پیغمبر دی ؟

دشیطان فریبو ته چې ګورې همدارنګه آدم علیه السلام ته چې شیطان وسوسه ور واچوله هغه نه ورسره منله خو دحضرت حوا (رضی الله تعالی عنها) په واسطه یې په حضرت آدم علیه السلام دانه وخوړله اوله جنت څخه یې راکوز کړ.

دلته هم ابلیس لعین دې خلکو ته په فکر کې ورکړه ډېر سره اوسپین زر یې اونورشیان یې دده ښځې ته ور وړې هغه ښځه یې ورته واسطه کړه اوهغې ورته وویل چې څه کېږي ؟ دعاوکړه چې هغه پیغمبر ددغې علاقې نه لرې شي ،زمونږ اوتاسې دنیا به موهم ډېره وي اوعزت به موهم ډېر وي اوداخلک بۀ له تکلیف نه خلاص شي.

کله چې بلعم بن باعورموسی علیه السلام ته ښېرا اوبددعا وکړه ،خدای پاک ﷻ یې ژبه راتاوکړه اوخپل قوم ته یې ښېراوکړه اودده ژبه له خولې راووتله اوکافر له دنیا تیرشو.

کله چې په ځان پوه شو چې تباخوشوم نوبیا یې خپل قوم ته وویل چې زما خومواخرت تباکړخویوکار به زه دروښایم هغه داچې دمسلمانانو مخنوی به هلته وشي چې دوی په بدعملي لګیاشي نوتاسې دمسلمانانو فوج ته خپلې ښځې ورولیږئ ،که

هغوی یوکس هم بدعملي وکړي نوټول فوج بهٔ شکست وخوري نویوې ښایسته ښځې څه سامان واخیست دسودا په بهانه هلته ورغله .اخر انسان ده عاجز دی یوسړې چې په نام مجاهداو مسلمان و له هغې ښځې سره بدعملي وکړه ؛نوټول فوج شکست وخوړ.

نودبلعم بن باعور اخرت هم تباشو اودمسلمانانو دشکست لارې چارې یې وروښودلې اودهغو دبې لارې هڅه یې هم وکړه.

نوپه نیک عمل کې به داسې ځای ته سړی رسیدلی وي چې خلکو ته به بزرګ ښکاریږي اونیک انسان به وي ؛نوده ته ځان لوی انسان ښکاره شي اوپه آخر په ځان پوه نشې اوخاتمه یې خرابه شي اوکافر له دنیا تیرشي.

اوداسې هم پیښیږي چې یوکس به ډیروخت په بدعملي اوګمراهي کې تیرکړې وي خوچې دخدای پاک ﷻ دنیکې اراده ورته شوې وي نوپه اخیر وخت کې توبې اونیک عمل توفیق خدای پاک ورکړي.

نوپه دې کې دېته اشاره ده چې انسان باید هروخت په ډاراو ویره کې وي اوپه نیک عمل باندې دې نه دوکه کیږي چې ما وګټله اونه دې دګناه په وجه مایوسه کیږي چې ماخودومره ګناوې کړې دي ،ما به خدای پاک ﷻ بیخې ونه بخښي؛نوالله تعالی ﷻ له رحمت څخه به نه ناامیده کیږي اودنیک عمل په وجه به دلاوري هم نه کوي.

حضرت عمرفاروق ﷺ وايې چې زه خپل عمل وګورم نوکه خدای پاک ﷻ دافیصله وکړه چې ټول خلک به جنت ته ځي اويوسړی به جهنم ته ځي نوهغه به زه عمر يي اوچې دالله تعالی ﷻ رحمت ته وګورم نوکه خدای پاک ﷻ په اخرت کې اعلان وکړي چې ټول خلک به جهنم ته ځي اويو سړی به جنت ته ځي نوزه اميدواريم چې هغه به زه يم.

نودالله تعالی ﷻ رحمت ډېر زيات دی ،انسان دی که له خپلو ګناهونه څخه په اخلاص توبه وباسي نوخدای پاک ﷻ يې بيا دخپلو مقربوبندګانو څخه ګرځوي اودنيکې په وجه به نه دوکه کېږي.

نوبايد انسان هميش دخدای پاک ﷻ طرف ته متوجې وي بيا نوالله تعالی ﷻ مهربانه دی دانسان ددنيا حفاظت هم کوي اواخرت حفاظت يې هم کوي.

هو! خو دځواني په حالت کې ،دصحت حالت کې به له خدای پاک ﷻ څخه ډار زيات وي ځکه چې شيطان ډېر سړی خطا کوي اودسپين ږيرتوب په وخت کې دمرض اوضعف په حالت کې دې بيا دخدای پاک ﷻ رحمت ته اميدوار وي نااميده کېږي به نه اوکه کومه ګناشوې وي له هغه نه دې په اخلاص توبه وباسي نود(۲۰) کلونوکفر به خدای پاک ﷻ ورته معاف کړي.

نودځوانۍ په حالت کې ډار پکاردی کله چې په ځواني کې له الله تعالی ﷻ نه ډار پيداشو نوبيا شيطان په سړي نه غالبيږي ؛خوشيطان په موږ باندې دځواني حالت په غفلت کې تيرکړي.

له یو کس نه مې واورېدل چې زه حج ته ځم ،له هغې خوانه مې
دې خدای پاک ﷻ ژوندی نه راولي ما ورته وویل چې ولې ؟ هغه
وویل چې حج نشم ساتلی بیارانه خرابېږي اوس نوداشیطان کافر
ده سړې ته په ذهن کې دا ورکوي چې اوس خوځواني دي ،اوس یې
کوه چې هرڅه کوې بیاچې سپین ږیری شوې نوتوبه به وباسي ،حج
ته به لاړشي ،یونیک عمل به وکړې ،له هغه نه به ورسته بیا ځان
له ګناهونو څخه وساتې.

اوس نوداچاته معلومه دی چې ترسپین ږیرتوب پورې به
رسیږي،بیا به دحج موقع ورته پیداکېږي یابه دیوبل نیک عمل
موقع سړې ته پیداکېږي ،روغ سړی وي موټر ټکر شي اوپه هغه
ځای مړ شي.

نوموږ اوتاسې پدغه ناستې اومجلس کې باید هروخت دې ته
متوجې شو چې دځان سره دنیکي اراده وکړو اودبدی نه توبه
وباسواوپه هغه ځای دې له ګناهونوڅخه توبه وباسې چې ای
خدایه ! داګناهونه رانه شوي ،ته یې راته معاف کړې په اینده کې
مې ته دګناه څخه وساتې اودنیک عمل توفیق رانصیب کړې.

نوچې په کوم مجلس کې په اخلاص توبه وکاږي خدای پاک
یې مخکني ټول ګناهونه ورمعاف کوي تردې بورې چې په ورځ
کې اویا(۷۰) وارې له سړې نه ګناه وشي او اویا(۷۰) وارې په
اخلاص توبه وکاږي نوخدای پاک ﷻ یې اویا(۷۰) وارې توبه
قبلوي.

په حدیث شریف کې راځي دسخي اوبخیل دواړو مثال داسې دی چې دیوانسان وجود په زنځیر کې بند وي ،خوچې سخي سړې دنیکي اراده وکړي نوپه قرار - قرار دزنځیر کړی ازادیږي او له لاسونوڅخه ولویږي نوهغه جیب ته لاس کړي اوصدقه وکړي اوبخیل سړی چې دصدقې اراده وکړي نوهغه کړی نورهم مضبوطي شي ،دده لاس له هغه ځای څخه نه ښوریږي ؛نوداسې به ځان نه جوړوو لکه هغه بخیل چې دنیکي اراده وکړو بیرته شیطان را باندې غالبه شي ،شرم ده څرنګ اوس دخلکو ترمخ ووایم چې زه ډیره پریږدم اوهغه موقع یې له لاسه وباسي اودې ته نه ګوري چې په دې عام مجلس کې دشیطان سره مقابله وکړي اوله ځان سره هم توبه وباسي چې بیا یې نه کړم اوکه دخلکو په وړاندې توبه وباسم نوداټول خلک به راباندې شاهدان وي چې ای رب تعالی! زموږ په وړاندې دغه انسان دخپلو بدواعمالو نه توبه ویسته اوچې څلویښت نفره په یومجلس اوجنازه کې په داشاهدي ورکړي چې دافلانکی ښه سړی وو نوخدای پاک ﷻ یې شاهدي قبلوي اوچې هرڅومره ګناوې یې کړې وي هغه ورته معاف کوي.

په یوحدیث شریف کې راځي چې په کوم مړې باندې درې صفه جنازه وشي اوشاهدي ورکړي چې دغه نیک سړی و ؛نورب تعالی ﷻ دخپلوبندګانو شاهدي قبلوي.

نوپه هرمجلس کې که نیک عمل کیږي هم ټول خلک شاهدان دي که بدعمل کیږي هم ټول خلک درباندې شاهدان وي ،له دې وجې نه دې هیڅوک دخلکو په وړاندې بدعمل نه کوي. الله تعالی

ﷻ دې زموږ په څواناتو باندې رحم وکړي چې بدعمل هم وکړي اوبیا فخر هم ورباندې کوي. دایې دوهم تاوان دی ،بویې ګناه کړې الله تعالی ﷻ پرده پرې اچولې خودی یې په خپله پرده له ځانه لرې کوي،په مجلس کې ورباندې غړیږي دقیامت په ورځ به داټول خلک ورباندې شاهدان وي . اوکه څوک دټولوخلکو په وړاندې توبه وباسي ؛نودغه ټول خلک به دقیامت په ورځ ورباندې شاهدان وي اوپه هغه سخته ورځ کې زموږ چې په دنیاکې دڅاسره سخته دعوه اوحادثه پیښه شي نوکه څوک یو- دوه شاهدان ولري دقاضي اوحکومت په وړاندې په ډېره دلاوري سره غړیږي چې زه په دغه دعوه کې شاهدان لرم اوکه څوک شاهدان ونه لري ،که حق دعوه یې هم وي نوپه ډارکې وي ځکه چې شاهدیې نه وي.

نودهغه خدای پاک ﷻ په حضورکې چې له ویښته څخه نیولې ترهر رګ پورې په هرشي علم لري ،په ځمکه په اسمان په ټولوشیانو علم لري دهغه په حضورکې چې موږ نیک خلک شاهدان ولرو اونیکه شاهدي ورکړي ،چې دغه بنده موږ په فلانې ځای کې ولیدچې نیک عمل یې کاوه ،دګناه نه یې توبه ویسته تردغه نه به غټ دخوشحالي ځای چیرې وي اوکه خدانخواسته په هغه سخت ځای کې چادې شاهدي ورکړه چې ای رب تعالی ﷻ! دغه بنده ته علماوواونیکو خلکو وعظونه اونصیحتونه کول خوده نه منل ،ددین بې عزتي یې کوله . پیغمبرعلیه السلام به عارض شي،قران کریم به عارض شي اووایې چې ای خدایه ! زه دې چې دې خلکوته ورلیږلی وم ؛دغو خلکو په ماباندې عمل نه

کاوه، نودهغې ورځې نه مودې خدای پاک ﷻ وساتې اوزموږ تولو
دې رب تعالی ﷻ دنیکو اعمالو توفیق راکړي
آمین ثم آمین

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین
وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا
ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

الله

# (۵۰) مجلس

## ګناه زهر قاتل ده که په قصد سره وي اوکه په خطا سره

د حضرت نبي کريم ﷺ دا مبارك عادت و چې د سهار له لمانځه نه وروسته به يې له صحابه کرامو ﷺ څخه پوښتنه کوله چې چا نن شپه خوب ليدلی ؟ کوم صحابي ﷺ به چې کوم خوب ليدلی و نو هغه به يې نبي کريم ﷺ ته بيان کړ، ده ﷺ به ورته دهغه خوب تعبير بيان کړ.

يوه ورځ نبي کريم ﷺ د سهار له لمانځه څخه وروسته پوښتنه وکړه چې نن چا خوب ليدلی ؟ صحابه کرامو ﷺ څه ونه ويل ، نبي کريم ﷺ وويل چې نن ما خوب ليدلی ، زه به يې درته بيان کړم.

د انبياء کرامو عليهم السلام خوبونه وحيې وي، حضرت نبي کريم ﷺ چې کله پيغمبر کېده، نو شپږ مياشتې يې مسلسل خوبونه ليدل. او داسې خوبونه وو لکه څنګه چې دا سپېدې چوي، دده ﷺ په خوب کې هم هيڅ شك اوشبهه نه پيدا کېده، له دې وجې نه وايي چې خوب د نبوت شپږ څلوېښتمه حصه ده،

خکه ويل کېږي چې له ټولو نه بد او لوی درواغ دادي چې سړی په خوب کې درواغ وايي. خوب يې ليدلی نه وي ، په درواغو يې بيانوي، دا يوه لويه ګناه ده. خکه چې د نبوت په شپږ څلوېښتمه حصه کې يې درواغ وويل.

نو د نبي کريمﷺ خوب وحيې ده، په هغې کې څه شك او شبهه نشته، دا داسې ده لکه ده ته چې کومه وحيې په قرآن مجيد کې شوېده او موږ ته شك پکې نه پيدا کېږي، دده ﷺ په خوب کې هم بايد موږ ته شك پيدا نه شي.

نو حضرت نبي کريمﷺ خوب بيانوي چې زه ويده وم، دوه سړي راغلل، له لاس څخه يې ونيولم، روان يې کړم، چه څه، په لاړ باندې روان يو، يو ځای ته ورسېدو چې يو سړی پروت ده، بل سړي غټه تيږه په لاس کې ورته نيولې او په سر يې په تيږه باندې وولي، سر يې مات شي، تيږه تر ډېره ځايه پورې ورغړي، دا سړی بيا په تيږه پسې ورځي، چې تيږه راوړي، هغه څوك چې ويشتل کېږي هغه په دې دومره وخت کې بيرته جوړ شوی وي، هغه بل سړی يې بيا په تيږه باندې وولي، او بيايې دغسې سر ورمات کړي، دغه سزا همداسې روانه وي، ما له خپلو ملګرو څخه پوښتنه وکړه چې دا څه حالت دی ؟ دوی راته وويل چې: څه مخته څه !

مخته روان شوم، ګورم چې يو سړی پروت د ، بل ورته ولاړ ده او د اوسپنې چنګك ورسره ده، (په دې باره کې دوه قسمه

روايات راغلي دي) په يوه روايت کې چې د ښي طرف په سواختې کې دا ګنګك ور بند کړي، داسې يې کشوي چې تر غوږ پورې يې توله خوله ورباندې وشکوي، بيا دغه سړی ورته را تاو شي چپ طرف ته، دا طرف هم ورباندې شکوي، ددې طرف په شکولو سره هغه ښي طرف الله تعالی ﷻ په خپل قدرت کامله سره جوړ کړی وي، هغه بيا ورشي اوهغه ښي طرف بيا ورته وشکوي.

اوپه بل روايت کې راځي سواختی يې هم تر غوږه ورباندې څيرې کړ، بيايې په پوزه باندې پيل وکړ هغه يې هم ورڅيرې کړه، په سترګه يې بنا وکړه، هغه يې هم ورڅيرې کړه، دغه درې اندامونه يې چې کله بېرته جوړېدل، ده به په هغه بل طرف باندې شروع ورته وکړه، نبي کريم ﷺ فرمايي چې: ما پوښتنه ورڅخه وکړه چې دا څه حالت دی؟ ملګرو راته وويل چې: مخې ته خه! مخکې تېر شو، يو ځای ده چې د کوهي يا تنور په شکل کې ده، خوله يې تنګه ده، بېخ يې ډېر پراخه دی، کله چې مې ور وکتل د اور لمبې دي، لوڅ سړي او لوڅې ښځې پکې دي، دغه د اور لمبې دغه انسانان د تنور تر خولې پورې راپورته کړي، او بيا بېرته يې بېخ ته وغورځېږي. ما له خپلو ملګرو څخه پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ هغوی بيا راته وويل چې: مخته خه!

کله چې مخې ته ولاړو نو ګورو چې د وينو نهر ده، يو سړی په دغه نهر کې ولاړ ده او بل ورته ددغه نهر په څنډه ولاړ ده، او

ډېرې تیرې یې په خوا کې پرتې دي، کوم سړی چې په نهر کې وي ، هغه دا کوشش کوي چې ترڅو د نهر څنډې ته خان راورسوي او خان له دې عذاب څخه خلاص کړي، خو کله چې دې څنډې ته راورسیږي ، دغه پاس ولاړ سړی یې په خوله کې په تیږه باندې وولي او بېرته یې د نهر منځ ته ور وغورځوي. هغه بیا د نهر څنډې ته راځي او دغه پورته ولاړ سړی یې بیا په تیږه وولي. نبي کریمﷺ فرمایي چې ما بیا پوښتنه وکړه چې دا څه معامله ده ؟ راته یې وویل چې مخته ځه !

مخکې چې ولاړو ، نو یوه شنه باغچه وه، ډېر ښائسته ځای ده، په دې ځای کې یوه ونه ده، دهغې سوري ته یو سړی ناست ده، چې دومره جګ وو چې ما یې سر نه لیده، له ده سره په خوا کې ډېر ماشومان ناست وو، ماته ملګرو وویل چې دې ونې ته وخېژه! کله چې ونې ته وختم، نو یوه ښائسته منزل ته ولاړم، ډېر بهترین ځای ده، د سرو زرو او سپینو زرو له خښتو څخه جوړ شوی ده، په هغه ځای کې یې راته امر وکړ چې پورته ولاړ شه ! له هغه نه پورته بل ښائسته ځای ته ولاړم، په هغه دوهم منزل کې چې کله ودرېدم نو راته یې وویل چې هغه پورته ځای ستا دی، سر مې چې پورته کړ نو دریم ځای د ورېځې په شکل ډېر جګ راته معلوم شو، ډېر ښائسته و، ما ورته وویل چې: زه غواړم تر څو خپل ځای ووینم،هغوی راته وویل چې دا کار په ژوند کې نه شي کېدای. هغه ځای ته که ورتللې نو له مرګ څخه وروسته به وي. د دنیا په ژوند کې نه شي کېدای.

نو خپلو ملګرو ته مې وویل چې: نن خو ما په دې لاره باندې څه عجیبه منظرې ولیدلې ، داڅه عجائب و؟ تاسې خوماته وواياست چې داڅه وو؟

په ملګرو کې یوه راته وویل چې: زه جبرائیل علیه السلام یم اودا بل ملګری مې میکائیل علیه السلام دی.

په لاره چې روان وو او هغه یوه سړي چې هغه بل په تیږه باندې په سر ویشته او سر به یې ورمات کړ اوبیا به یې تیږه را اخیسته اودهغه سر به بېرته جوړ شوی و نو دا دهغه عالم ، قاري او مسلمان مثال ده چې په قرآن باندې خبر وي خو عمل وربان‌دې نه کوي، لمونځ نه کوي، ویده وي او لمونځ ورڅخه قضا شي، د شپې هم نه پورته کېږي او نه هم د ورځې له خوا د قرآن کریم د ویلو او په هغه باندې د عمل کولو اهتمام کوي. نو ددغسې عالم او قاري دغه سزا ده چې دقیامت تر ورځې پورې به په دغه سزا کې مبتلا وي، ترڅو پورې چې یې دقیامت په ورځ فیصله وشي.

اوهغه بل سړی چې یو طرف خوله به یې تر غوږونو پورې ورته څېرې کړه، بیابه یې دا بل طرف ورته څېرې کاوه، دا دهغه درواغجن سړي سزا ده چې له کوره راووځي ، شپه یې په کور کې تېره کړې وي، او په درواغو په خلکو کې یوه خبره مشهوره کړي او بیا نور خلك دده دغه دروغ خبره یوځای او بل ځای په مجلسونو کې بیانوي. نو ددغه درواغجن سړي دغه

سزا ده چې په ده باندې به خدای ﷻ داسې د عذاب فرښتې مقررې کړي چې ده ته به په قبر کې دا عذابونه ورکوي چې خوله به یې ورته تر غوږونو ورڅېروي.

او هغه تنور غوندې ځای چې په هغه کې لوڅ سړي او لوڅې ښځې د اور لمبو د تنور تر خولې پورې راپورته کولې او بېرته به د تنور بېخ ته ور غورځېدل، دا دهغو زِناکارو سزا ده څوك چې په بدو عملونو په دنیا کې لګیا وي. نو هغوی ته به رب تعالی ﷻ دغه سزا ورکوي.

او هغه بل سړی چې د وینو په نِهر کې ولاړ و اود ځان د اېستلو هڅه به یې کوله او هغه بل سړي به بېرته په خوله کې وویشت بیابه یې نِهر ته ور وغورځاوه، نودا د سود خور سړي مثال ده، څوك چې د سود معاملې کوي، هغه ته به رب تعالی ﷻ په قبر کې داسې سزا ورکوي ، تر قیامته پورې به یې دغه حالت وي، اود قیامت د ورځې سزاګانې خو یې لانورې دي. او کله چې سود خور د محشر په ورځ له قبر څخه راپورته کېږي نو د یوې کوټې په اندازه به یې خېټه لویه وي، چې ماران اولړمان به پکې له ورایه لیدل کېږي. او دی به د خپلې خېټې د دروند والي له وجهې نه پورته کېږي او بېرته به غورځي.

او هغه ونه چې دهغې د لاندې یو سړی ناست و، هغه حضرت ابراهیم ؑ و، او دهغه شاوخوا چې کوم ماشومان وو دا هغه

ماشومان وو چې په وړکتوب کې مړه شوي وي، هغه به جنت ته داخلیږي. دا دهغوی یو مثال و.

او هغه اول کور چې تا په اول منزل کې ولیده دا په جنت کې د عامو مسلمانانو ځای ده ، دا دوهم منزل چې تر لوړني ښائسته وو هغه د شهیدانو ځای ده . اوهغه دریم منزل ستا ځای ده، چې هغه له نورو ځایونو څخه دومره پورته دی لکه یو څوك چې له ځمکې څخه د وریځې په طرف ګوري.

اوس دغه خوب چې نبي کریمﷺ خپلو صحابهٔ کرامو ته بیانوي دا د عبرت لـه پاره دی. د ګناهونو او عذابونو نمونې چې حضرت جبرئیل او حضرت میکائیل ورته وربنیي او دی یې امت ته بیانوي چې امت یې له دغو عذابونو څخه خبر شي او خان ترې وساتي.

څوك چې په قرآن کریم باندې عمل نه کوي ، هغه به دې پوه شي چې لوی خدای نعمت راکړی د اسلام او قرآن په شکل کې، خو کله یې چې ددغه لوی نعمت بې قدري وکړه اوپه قرآن باندې عمل نه کوي نو بیابه یې دغه سزا وي. دغه دماغ د قرآن د زده کړې ځای ده ، نو چې عمل وربانـدې ونه شو ، نو دغه ځای ته به دغه سزا ورکول کیږي، چې هغه به په تیږه باندې بار بار وهل او تکول کیږي او ماتیږي به. او چې څوك په دروغو باندې لګیا وي ، دهغو به دا سزا وي لکه چې مخکې بیان شو ، همداسې د زناکارانو او سودخورو.

او حضرت حذیفه ﷺ فرمایي چې خلکو به د خیر پوښتنې کولې او ما به د شر پوښتنې کولې ترڅو پکې واقع نه شم.

مونږ او تاسې ته ترټولو ضرروري داده چې له ګناهونو څخه ځان خبر کړو او ځان ورڅخه وساتو. که یو څوك ټول ژوند نفل ونه کړي ، نفل خیراتونه او صدقې ورنه کړي ، نور نفلي عبادات ونه کړي، نوخدای پاك ﷻ انسان ورباندې نه نیسي. سزا نه ورکوي، خو چې یوه ګناه یې وکړه فی الحال سوال اوځواب ورته متوجه کېږي، د انسان له پاره ډېرې مهلکې ګناوې شته دي، انسان ډېر ښه اعمال کړي وي، خو کله ورڅخه داسې ګناه صادره شي چې هغه مخکني اعمال یې ټول ورباندې ختم او له منځه ولاړ شي

الله تعالی ﷻ فرمایي: «لا تُبْطِلُوا اَعْمَالَكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰی» چې که عمل یعنې صدقه مو وکړه نو بیا وروسته په هغه سړي باندې احسان مه باروئ چې هغه ګټلی عمل او انعام به مو ټول له لاسه ووځي او باطل به شي. رِیا مه کوئ لکه یوڅوك لمونځ کوي بل نېك عمل کوي او نیت یې پکې خراب شي چې خلك ووایي چې څومره ښه سړی ده ، ښه عالم ده، ښه صوفي ده، ښه حاجي صاحب ده، ښه فلانکی ده، نو په نیت کې چې دا مسئله منځ ته راغله ټول اعمال یې باطل شول، لمونځ راواخله. له لمانځه سره دغه مهلك شیان زده کړه، چې که لمونځ مې ښه وکړ خو نیت مې خراب شو، رِیا راڅخه پکې وشوه، نو لمونځ مې ولاړ خراب شو.

نو د انسان لـه پـاره دا مهمـه ده چـې داسـې خطرنـاك شـيان وپېژني او ځان ورځخـه وساتي، اودا ګناه يـو داسـې مثـال لـري لکه زهرِ قاتل. زَهر که څوك قصداً وخوري(هم يې وژني اوکه پـه هېره باندې يې وخوري هم يې وژني. د يو چا ګمان د اوبو وي ، ګلاس يې راپورته کړ او ويې څکل نو کـه قـصداً يـې څکلي وي اوکه سهواً په دواړو حالاتو کې به يې وژني، يواځې دومره خبره پکې راتلای شي چې که يوڅوك په قـصدا سره زهر وڅکـي نـو عام خلك به بد ورباندې وايي چې زهر يې ښه پېژندل او سره لـه هغې يې بياهم وڅکل او ځان يې قصداً وواژه. اوکه يوڅوك يـې په ناخبرتيـا کـې وڅکـي او ورځخـه مـړ شـي ، خلـك بيـا پـرې افسوس کوي ، چـې دی غريـب خـو خبر نـه وو ، د بـي خبـري پـه حالت کې يې زهر وڅکل او ورځخه مړ شو. مطلب دا چې په دې صورت کې د خلکو له ملامتيا څخه خلاص وي.

( رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ إِن نَّسِينَآ أَوْ أَخْطَأْنَا ) خدايه پاکه ! مونږ پـه هغـه ګناه مه نيسې که له مونږ څخه په هېره يا په خطا سره شوې وي.

دلته مفسرين کرام ليکي چې: حضرت نبي کـريمﷺ فرمـايي چې: زما له امت څخه خطا او نسيان معاف دي اوپه قـرآن کـريم کې وايي چې که سهو او خطا راڅخه هم شوي وي مـا وربانـدې ومه نيسې ، نو له دې څخه دا جواب دی چې ګنـاه زهـر دی، کـه پـه هېره هـم درڅخـه صـادره شـي ، سـتا کـار خرابـوي، کـه پـه ناپوهي درنـه صـادره شـوه هـم سـتا کـار يـې تبـاه او بربـاد کـړي،

داسې نه ده چې هغه ګناه چې تا په ناپوهي او ناخبري سره کړې ده او نه به له عذاب څخه پرې خلاص شې. دا به وي چې سړی د.ر ناخبره وي ، د ډېرې سهوې او نسيان له امله يو کار ورڅخه وشي نو په آخرت کې به يې خدای ﷻ ورباندې ونه نيسي. اما که وېې نه نيسي خو هغه مرتبه يې پرې کمه شوه، که دا ګناه ورڅخه نه وای شوې نو دده به څومره اوچت مقام و.

انبياء عليهم السلام ټول له ګناهونو څخه پاك دي، او به همدې خبره زمونږ عقيده هم ده ، خو له انبياء کرامو عليهم السلام څخه داسې خطايي لکه سړی چې په لاره ځي، بې اختياره په خته کې وښوييږي، دا خو ګناه او جرم نه ده، سړی روان و، ځمکه ښويه او خته وه اودی پکې وښوييده. په عام فکر او په رواج کې هم ده ته څوك جرم نه وايي، خو دغه لار چې د ختې لاره ده، په دغه لار کې که ماشوم شپه او ورځ غورځيږي نو څوك يې نه ملامتوي، خو که يو مشر، مولوي صاحب، يا حاجي صاحب يو هوښيار سړی وي، او بل طرف ته سمه لاره هم وي، خو دی له هغې سره سره بيا هم دغه د ختو په لاره باندې ځي او بيا پکې وغورځيږي نو هرڅوك يې ملامتوي چې دومره غټ سړی وښوييد. ولې يې لارې ته نه کتل، دا خو خته ده ګناه خو يې نه ده کړې. خو که په هماغه د ختو په ځای کې کوم ماشوم ولوېږي څوك بد نه پرې وايي، ځکه چې وايي ماشوم ده، او مشر ځکه ملامتوي چې دی خو لوی ده، ولې يې احتياط نه کاوه، نو کالي به يې نه خرابېدل.

نو انبياء عليهم الصلاة والسلام چې مرتبه او مقام يې تر نورو انسانانو ډېر لوړ ده داسې اجتهادي نسياني خطا چې ورځخه شوي وي هم في الحال عتاب د الله تعالى ﷻ له لوري ورکړل شوی دی چې تا به ولې داسې کار کاوه ؟ هغه پیغمبر بیا په خپل هغه عمل باندې دومره ژاړي چې که د ټولې دنیا ژړاوې رایوځای کړې د حضرت آدم ﷺ ژړا ته نه رسیږي. چې په خطایي سره یې د غنم یوه دانه خوړلې وه، تر سلو کلونو یې د حیا له امله د اسمان په لوري ونه کتل، تر څلوېښتو کلونو پورې یې له خپلې بي بي سره نږدېوالی ونه کړ، تر ډېرو شپو یې خوراک څښاك نه کاوه، دا ولې ؟ ځکه چې دده شان او مرتبه ډېره لوړه وه. نو ځکه دومره وړه خبره هم ورته معاف نه شوه. اوس تاسې فکر وکړئ ګناه نه ده، بلکې سهو او خطا ده، الله تعالى ﷻ له ګناهونو ساتلی ده، خو یواځې او یواځې د سهوې له امله دا کار د افسوس باعث شو او کنه؟

همدا وجه ده چې هر نبي ته چې د قیامت په ورځ انسانان ورجمعه شي چې ته دخدای پاك ﷻ په حضور کې زمونږ شفاعت وکړه چې زمونږ سوال او ځواب زرترزره شروع شي، نو هر پیغمبر چې په دنیا کې ورځخه کومه اجتهادي سهوه شوې وي هغه به ذکر کوي اووايي به چې له ماځخه په دنیا کې دغه خطایي یا سهوه شوې ده، زه د الله تعالى ﷻ حضور ته نه شم ورانديږ کېدای اونه دا کار کولی شم، تردې پورې چې خبره به نبي کریم ﷺ ته راورسیږي اوهغه ﷺ ته چې الله تعالى ﷻ په دنیا

کې کوم زېرې ورکړې دی دهغه په فضل او برکت سره به فی الحال او سمدستي شفاعت شروع شي، ځکه چې له دهﷺ څخه کومه سهوه او خطا نه ده شوې.

نو غرض دا چې ګناه که په سهوه او که په خطا هم وي د انسان مرتبه ورسره کمېږي.

اوکه داسې وي چې په ناپوهي سره یوه ګناه وشي لکه دا زمونږ عام خلك چې کوم کار وکړي نو دې ته سهو او خطا نه وايي بلکې دې ته جِهل وايي، دوی ځان په دین نه خبروي، دا ځان په دین نه خبرول دا په خپل ذات کې یو جُرم دی، ولې؟ ځکه چې خدای پاكﷻ علم فرض کړی ده، دار د اسلام ده، علم فرض ده، دومره احکام زده کول چې انسان وربانـدې څلوېشت ساعته ژوند تېر کړي دا فرض ده، اوس نو چې سړی بنه ورباندې خبر هم ده، چې په ما باندې علم فرض ده اوبیایې هم نه زده کوي، ددغه انسان نه چې بیا کومه ګناه صادرېږي او بیادا دلیل هم وړاندې کوي چې مونږ ته ګناهونه څه معلوم دي، دا عذر یې ناقابل قبول اونه ورته هغه ګناه معاف کېږي، دې ته بیا سهو او خطا نه وایي ، دې ته جِهل وایي. قصداً له جهل څخه کار اخلي اونه یې زده کوي.

نو مطلب دا چې که مونږ او تاسې د آخرت له تکلیفونو اوله هغو عذابونو څخه خبر شو چې د همدغو ګناهونو له وجې به راکول کېږي بیا به هېڅکله هم ګناه ته ورنږدې نه شو. خدای

پاك ﷺ مو دې نجات نصيب کړي. نو بايد کوشش وکړو تر څو په پوره توګه له ګناهونو څخه ځان خبر کړو او له دې سره سره بيا ورڅخه ځان وساتو.

د معاملاتو په باب کې بايد هر تاجر علم حاصل کړي، چې دا بيع فاسده ده، دا باطله ده، او ځان هم ورڅخه وساتي. دا علم هم د فرضياتو له جملې څخه دی.

دا اوس چې حالات سره خراب او ګډوډ شول، نفقې خرابې شوې، بيعې په صحيح طريقې سره نه کېږي، زياتره په سُود لګيا وي، تردې پورې چې ددغو نفقو اثر د مدرسو په طالبانو کې هم ليدل کېږي، طالبان به ټول بزرګان و، خو اوس هغسې طالبان نه ليدل کېږي، او که وي هم ډېر کم دي. وجه يې داده چې چنده د سودخواره او رنګارنګ خلکو له خوا ورکول کېږي، نو هغه به خامخا او حتماً ددغو مدارسو په طالبانو هم يو څه ناځه اثر کوي.

سره له دې چې که يو څوك د چا په حلالو او حرامو خبر نه وي، پوښتنه ورته ضرور نه ده، خوراك ورته روا ده، طالبان مسافر دي، ددوی له پاره دغه د وظيفې ډوډۍ او سوال روا ده، خکه علم حاصلول بې له دې څخه نه کېږي، حتی که يو طالب په کلي کې اوسېږي نو په هغه کلي يې دا حق ده چې ده ته به ډوډۍ ورکوي، تردې پورې چې هغه د خپلې خوراکې په اندازه غلا هم کولی شي، خو ددې هرڅه باوجود چې کله د

خلکو دنیا خرابه شي د حلالو او حرامو تميز ختم شو نو سره له دې چې طالب ته ډېر څه روا و، بیایې هم په طالب باندې اثر وکړ او دهغه په تقوی اودیانت کې فرق راغی. طالب سره له دې چې مسافر ده، کور یې پرې ایښی، نفساني خواهشات یې شاته غورځولي نو چې کله په ده باندې اثر کوي نو په عامو مسلمانانو باندې به یې ولې نه کوي؟

هره ورځ خلك را روان وي چې زړونه مو خفه وي، پرېشاني راته پیدا وي، تردې پورې چې ځینې یې لادا هم وايي چې خودکشي ته مې څو وارې زړه ښه کړی. دا ولې؟ ځکه ماحول خراب ده، ګناهونه ډېر دي، د مسلمان په زړه تور داغ پیدا کېږي. نبك سړی چې بازار ته ولاړ شي اوپه یوه بېکاره مجلس کې کیني، نو دده زړه هغه تنګ شي، ولې ځکه چې دې یو نیك عمله انسان ده، نو چې بد ځای ته ورغی دهغه بد مجلس اثر وربانديې ښکاره شو، خو که چېرته ټول مجلس د بد عمله خلکو وي نوبیاپه هغوی باندې هېڅ اثر نه کوي، ځکه هغه ټول ماحول همداسې ده

د نبي کریمﷺ په وخت کې بدبويي پورته شوه، حضرت نبي کریمﷺ وویل چې دا په کوم ځای کې منافقین د مسلمانانو په غیبت لګیا دي. نو محدثین کرام فرمايي چې نن سبا ټول خلك په غیبت لګیا دي، څوك په بد بويي نه پوهیږي دا ولې؟ نو ځواب یې داده چې مخکې زمانه او اهلِ زمانه ټول سره پاك وو، هلته به د بدبويي اثر ډېر زر ښکاره کېده. او نن سبا چې

ټول ماحول خراب ده، نو ځکه د بدبويي اثر هم نه حِس کېږي، ددې مثال داسې ده لکه سړی چې په بیت الخلاء کې دننه ناست وي، نو هلته سره ددې دومره زیاتې مرداري ده ته بوی نه محسوس کېږي، ځکه چې هلته ماحول ټول خراب ده، پوزه او دماغونه يې ټول له بدبويي ځخه ډك وي، نو دا ورته نه معلومېږي چې بوی شته او کنه. او په پاك ځای او مجلس کې که ډېر لږ هم د بدبويي اثر ښکاره شي نو هرڅوك يې حس کولی شي.

نو دا ګناهونه چې ډېر شو نو ځکه يې عام خلك په فرق نه پوهېږي، او نېك خلك پرې پوهېږي. له همدې وجهې نه نبي کريمﷺ فرمايي چې: (اِسْتَفْتِ قَلْبَكَ) له خپل زړه ځخه وپوښته او فتوی وغواړه (دَعْ مَا يُرِيْبُكَ اِلٰى مَا لاَ يُرِيْبُكَ) چې که په کومه خبره کې درته شك پيدا شو نو پرې يې ږده، مه يې کوه، مطلب دا چې د چاړه پاك وي نوکه هغه يو داسې ځای ته ولاړ شي چې هغه شكمن وي نو في الحال ده ته شك پيدا کېږي، هغه شي ته يې زړه نه کېږي، زړه يې تنګيږي، نو مسلمان نېك عمله انسان ته چې په زړه کې تنګي پيدا کېده نو هغه دې په دې پوه شي چې دا شی ناروا ده.

نو زمونږ ټول مجلسونه له دروغو او غيبتونو ځخه ډك وي، معاملات مو ټول په دروغو بِنا وي، د ګناه په ماحول کې مو سترګې، غوږونه ټول مصروف وي، نو همدا وجه ده چې په

عبادت کې مو خوند او ذائقه نه شته. او له خپل عبادت څخه خوند نه شو اخیستلای.

تاسي لږ سوچ وکړئ! دغه علماوو او طالبانو سره مو چې لږ څه تعلقات پیدا شي، چې دوی د کتاب او احادیثو سره د تعلق له وجهې یو څه پاك دي، اګر که هغه پخوانی حالت د دوی هم نه دی پاتې، خو که بیا هم څوك له دوی سره علاقه لري، کله ناکله ورسره ناسته پاسته کوي، دهغوی په مجلس او محیط کې راشه درشه ولري نو فی الحال انسان ته په عبادت کې لذت پیدا کیږي اوله الله تعالی ﷻ اودهغه له عبادت سره یې مینه پیدا شي.

## د یو مُخلص عجیبه واقعه

یو چا قصه کوله چې په کابل کې یو افسر راته ویل چې دا ښځي عجیبه ده. زه په ډېرو ځایو کې ګرځېدلی یم، له هرچا سره مې راشه درشه وه او شته. له ډېرو ښو ښو حافظانو او قاریانو څخه مې د قرآن کریم تلاوتونه په ډېر ښه انداز اوریدلي دي خو له دې تولو سره سره اثر یکې نه وي، او کله چې زه ستاسې د خلیفه صاحب مدرسې ته درشم، هلته چې کله په ختم کې د قرآن کریم تلاوت شروع شي نو د سړي ژړا نه دریږي. د دې څه وجه ده؟ په نورو ځایونو کې په ښو او مختلفو لهجو ویل کیږي هغه اثر یکې نه وي کوم چې د خلیفه صاحب د ختم

په تلاوت کې وي. هغه شخص ویل چې ما دغه افسر ته وویل چې: دا په ځای کې فرق ده. هغه ځای داسې ځای ده چې صفایي پکې ډېره ده. نو هلته ښکه د قرآن کریم اثر ډېر زر ښکاره کېږي، نېك خلك چې قرآن کریم وایي په هغه ځای د خدای تعالیٰ ﷻ رحمت او سکینه نازلېږي، نو بیا خو به خامخا دا اثر پیدا کېږي.

## یوصحابي ﷺ د تلاوت په وخت کې د رحمت ملائکې وینې

یو صحابي ﷺ تلاوت کوي، خواته یې اس تړلی ده، هغه آس کله یو او کله بل طرف ته منډې وهي، ددغه صحابي ﷺ یو کمکی زوی یې دده په څنګ کې پروت ده، دغه صحابي ﷺ ووېرېده چې هسې نه دا زوی مې آس لاندې کړيَ، نو تلاوت یې بس کړ، کله چې یې بس کړ آس بېرته په آرام شو، بیا یې چې تلاوت شروع کړ، نو بیا آس منډې شروع کړې، درې وارې دا خبره تکرار شوه، کله یې چې پورته وکتل نو د وریځې په شکل څراغونه راځړېږي، نودی پورته شو او تلاوت یې بس کړ، زوی یې د آس له څنګ څخه لیرې کړ چې اوس به نو ښه په طبیعت سره تلاوت وکړم. دغه صحابي ﷺ وایي چې کله مې هغه لیرې کړ، او بیا د باندې راووتم هغه څراغونه او رڼاګانې ورکې

شوې وې، سهار یې نبي کریمﷺ ته دغه حال بیان کړ، هغهﷺ ورته وویل چې: دا ملائکې وې، سکینه وه، تلاوت به دې کاوه، که تا تر سهاره پورې خپل تلاوت جاري ساتلای وای نو دغه ملائکې به عامو خلکو په خپلو سترګو لیدلې وې.

نو چې پاك خلك، دخدای ﷻ دوستان د قرآن کریم تلاوت کوي نو په هغه ځای باندې دالله تعالیٰ ﷻ رحمت نازلیږي، نو چې په آس اثر کوي نو په انسان باندې به یې ولې نه کوي. هغه طالب اوصوفي چې پاك ده، هغه ختم او مجلس کې چې پاك پاك خلك ناست وي نو کله چې په هغوی باندې د الله تعالیٰ ﷻ رحمت شروع شي نو دا ناپاکه خلك چې ورسره ناست دي دوی به هم د آس غوندې منډې شروع کوي. په ده به هم د الله تعالیٰ ﷻ د رحمت اثر ښکاره کیږي، داچې یو څوك څو وارې په دغسې مجلس کې کیني نو الله تعالیٰ ﷻ یې په زړه کې اثر پیدا کوي، په خپله یې بیا له عبادت او بندګي سره مینه پیدا شي. مونږ الحمد لله دا اثرات په خپلو سترګو لیدلي دي. د ځان په هکله دا خبره نه کوو. د طریقت په باب کې وایو. د حضرات مبارکانو او محترمو خلیفه صاحبانو په باب خبره کوو. بلکې مونږ د خپل وخت سره چې موافق لیدلي نو یقیني درته وایم چې: هغه طالبان چې په داسې مدارسو کې اوسیږي چې په هغو ځایو کې ختمونه وي، په هغه ځای کې یو خلیفه صاحب موجود وي، ددغو طالبانو اود هغو مدرسو د طالبانو چې هلته دا ختمونه نه وي نو د ځمکې او آسمان فرق لري.

## د دوه طالبانو حیرانوونکې واقعې

ماته یو طالب چې د (میر زاهد) د درجې طالب و قسم وخوړ چې: په خدای قسم که به زه د طالبي په مطلب پوهېدم، مګر کله چې دلته راغلم، دلته پوه شوم چې په طالبي کې څه مطلب ده، ځکه زه په فلانکي، فلانکي، فلانکي ګناهونو اخته وم، ځان مې نه شو ترې خلاصولای. خو کله چې دلته راغلم هرڅه مې سم دم شو.

بل د وړې دورې طالب راته قسم وخوړ چې دا لس کاله مې په طالبي کې تېر شوي دي، دا ټول یو طرف ته او دغه یو کال د وړې دورې مې بل طرف ته، داسې راته معلومېږي چې هغه لس کاله مې عبث تېر کړي دي او سږ کال چې دلته راغلی یم دا دې خدای ﷻ په عُمر کې راحساب کړي.

همدغه طالب قسم کاوه چې: یوه ګناه مې داسې وه، چې ما به ډېر زیات کوشش کاوه ترڅو ځان ترې منعه کړم، تردې چې د ځان د وژلو اراده مې وکړه، خو کله چې دلته راغلم او ستاسې سره په دغو مبارکو ختمونو کې شریك شوم، نو له هرڅه پرته الله تعالی ﷻ له هغو ګناهونو څخه خلاص کړم. اوس په هغه تېره شوې زمانه او لس کاله طالبي باندې افسوس کوم چې هسې مې عبث تېر کړي دي.

نو ګورئ! په مجلس کې څومره فرق وي، هغه هم طالبان دي، او دا هم طالبان دي، خو دلته چې لږ څه دخدای ﷻ د ذکر او خوف خبرې وي، نو بیا په هغه مخکني ژوند باندې ارمان کوي. نو عوام مسلمانان چې له دې نه مخکې په هېڅ خبر نه وي نو هغوی به ولې په خپل تېر ژوند ارمان نه کوي.

څومره چې سړی له ګناهونو ځان ساتي، دنېکو خلکو په مجلس کې شرکت کوي، رب تعالی ﷻ به یې له عبادت سره مینه ور زیاته کړي. په عبادت کې به یې خوند او لذت وي، حرص به یې ختم او قناعت به یې په برخه شي. او بیا به ددې هڅه او فکر نه کوي چې یا ځان ووژني او یا بل ته ضرر ورسوي.

## د دنیا ګټل مطلقاً ناروا نه دي

دنیا ګټل مطلقه ناروا کار نه دی، بلکې له دنیا سره محبت اومینه ناروا ده، که دنیا په جائزه طریقه سره وګټل شي، کوم مانع نشته، بلکې دا هم عبادت دی، څکه نبي کریم ﷺ فرمایي: (اَلْكَاسِبُ حَبِيْبُ اللهِ) کاریګر د خدای تعای ﷻ دوست اومحبوب دی، خو شرط پکې دادی چې په جائزه طریقې سره وي.

صحابهٔ کرامو ﷺ هم دغه دنیا، مال اودولت ګټلی، کسب یې کړی. د تبوک په غزا کې حضرت عثمان ﷺ په یوه قول (۹۵۰)

اوښان صدقه کړل او زر دیناره یې راوړل او نبي کریم ﷺ ته یې په مخکې کېښودل. دا چې په یوه غزا کې دومره صدقه ورکوي، خو دنیا ده ورسره. که دنیا، مال او دولت ورسره نه وای، نوکله یې دومره صدقه کولای شوای؟

حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه چې وفات شو، نو دده رضی الله عنه څلور مېرمني (ښځې) وې. یوې ښځې یې د اتمې حصې د دنیا د صلحې په عنوان څلورمه حصه وغوښته نو اتیازره دیناره ورته ورسېدل. یعنې دده د مال اتمه حصه (۳۲۰۰۰۰) روپۍ شوې.

مال او دولت پیغمبرانو، صحابه کرامو او اولیاء الله ټولو درلوده خو له مال او دولت سره یې مینه نه درلوده، بلکې د الله تعالی ﷻ له دین سره یې مینه وه. نو حاصل د خبرې دا شو چې دنیا ګټل ناروا نه، بلکې محبت ورسره ناروا ده.

## حضرت عبدالقادر جیلانی رحمه الله د مال په غرقېدلو اوبېرته پیدا کېدلو ولې (الحمدلله) وایې؟

حضرت پیران پیر (شیخ عبدالقادر جیلاني) رحمة الله تعالی علیه ته څوك راغلل او ورته یې وویل چې: هغه بېړۍ (کشتۍ) چې ستا د تجارت مال پکې را روان وو، هغه غرقه شوه، پیران

پیر صاحب سر تیټ کړ ، بیایې بهرته سر راپورته کړ ویې ویل : (الحمد لله) . لږ وروسته بیا سړی راغی چې کومه بېړۍ چې غرقه شوې وه ، هغه ستا نه بلکې د بل چا وه او ستا د مال بېړۍ روغه او سلامته ده ، ده بیا سر تیټ کړ او له لږ ځنډ وروسته یې بهرته راپورته کړ. بیایې وویل : (الحمد لله) . په دې مجلس کې د علم ظاهر یو عالم ناست وو ، نو سمدلاسه یې اعتراض وکړ چې ستا دغه مال دولت پاك وو او که نا پاك ؟ که پاك و نو په غرقېدلو دې ولې الحمد لله وویل ؟ او که ناپاکه وه نو بیا په بېرته پیدا کېدلو دې ولې الحمد لله وویل ؟ ته خو یو بزرګ انسان یې که پاکه وي نو په غرقېدلو یې باید خفه شوی وای اوکه ناپاکه وای نوپه پیدا کېدلو یې باید خفه شوی وای. نو باید تا الحمد لله نه وای ویلي.

حضرت پیران پیر صاحب رحمه الله ورته وویل: چې: نه مې د دنیا په ورك کېدا الحمد لله ویلي اونه مې په بېرته پیدا کېدا. کله چې ماته نوکر وویل چې: ستا د مال بېړۍ غرقه شوه، نوزه خپل نفس ته متوجه شوم، چې زما په نفس کې څه اثر پیدا شو اوکنه، نو د الله تعالی ﷻ رحم او کرم و په زړه کې مې هېڅ دخفګان او غم نښې نښانې نه وې نو شکر مې ادا کړ چې په زړه کې مې د دنیا محبت نشته. بیا یې چې کله بېرته راباندې زېرې وکړ چې هغه ستا کشتۍ نه بلکې د بل چا وه، نو زه بیا خپل نفس ته متوجه شوم چې دی په دې خبره خوشحالېږي اوکنه ، خو بیا راته معلومه شوه چې په زړه مې څه اثر د غم او

خوشالی نه ښکاریږي نو څکه مې د الله تعالی ﷻ حمد او ثنا بیا اداء کړ.

نو اصل حقیقت د دنیا داده چې نه به یې په ورك کېدلو خفه کېږي اونه به یې په پیدا کېدلو خوشحاله کېږي. خو نن سبا دا خبره نشته، یو څل چې د چا له الله تعالی ﷻ سره تعلق جوړ شي، هغه بیا دنیا ، مال ، جایداد ته اهمیت نه ورکوي، مینه یې ورسره نه وي، نه یې په پیدا کېدلو خوشالیږي اونه یې هم په ورك کېدلو خفه کېږي. خو دا حالت به هلته په لاس راځي چې زمونږ له دین سره تعلق جوړ شي.

مونږ د دنیا په ختمېدا دومره خفه کېږو چې هغه خفګان مو نه ورك کېږي. اوپه پیدا کېدو یې بیا دومره خوشحاله کېږو چې هغه خوشحالي مو بیا نه ورك کېږي. خو له دې سره بیا د لمانځه په قضا کېدو یا هم د جمعې په پاتې کېدو یا هم کولو سره مو کله هم خفګان او خوشالي پیدا شوې ؟

که یو سړی سل روپۍ وګټي اویاهم یو لمونځ په جمعه سره وکړي نو که په دې حالت کې ورڅخه یوڅوك په قسم سره پوښتنه وکړي چې په هغو سلو روپیو به ډېر خوشحاله شوی یې اوکه ددغه یو لمانځه په کولو سره ؟ نو معلومه ده چې انسان ته د سلو روپو خوند ډېر دی.

او حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي: ( التکبیرة الاولی خیر من الدنیا وما فیها ) ، دغه یو تکبیر تحریمه چې له امام سره یې

ونیسې دا تر تولې نړۍ بهتر دی، تول د جمعې لمونځ خو لاڅه کوي؟ خو مونږ چې په سلو روپیو څومره خوشاله کېږو د جمعې د لمانځه په نیولو سره هغومره نه خوشحاله کېږو. ددې وجه داده چې هلته مو له عبادت سره دومره مینه نشته لکه څومره مینه مو چې له دنیا سره ده. د سلو روپیو په تاوان سره که هغه زوی کړی وي نو خپل زوی وهو، که ورور کړی وي ورور وهو، په غصه یو، خو که په مقابل کې یې له دغو خلکو څخه د جمعې لمونځ قضا شي مونږ هېڅکله خفګان وریاندې نه دی کړی.

## یو بزرګ د تکبیر اولی د پاتې کېدو له امله درې ورځې ژړل

یو بزرګ جمعې ته راغی او تکبیر ورڅخه تېر شوی و، نو تر دریو شپو پورې یې ژړل، جمعې ته به راغی او بېرته به ولاړ او به خپل دې عمل ډېر زیات خفه و. چا ورڅخه پوښتنه وکړه چې: څه دریاندې شوي او ولې خفه یې؟ دغه بزرګ ورته وویل چې: که د یو چا زوی، ورور یا پلار مړ شي نو خلک ورځي او غمرازي غمشریکي ورسره کوي، خو له ماڅخه تکبیر اولی ( تکبیرتحریمه ) تېر شو خو هیڅچا راسره غمشریکي ونه کړه، دومره غټ غم راباندې تېر شو خو هېڅوک فاتحې ته رانغلل، د غم شرکت یې راسره ونه کړ او د تکبیر اولی خو دومره غم ده

لکه د سړي چې تولـه دنیا رنګـه شي، مونږ په کمکي بچي خومره ژاړو، په لړتاوان ژاړو. تکبیر اولی او جمعه تولـه رانه تېره شي ،دجمعې اقامت شروع وي ، زمونږ دلته د دنیا یوه خبره پاتې وي په هغې لګیا یو مُلا رکوع ته ورسیږي تکبیر وکړي په ولاړې اقتدا یې هم نه وي صحیح، ځکه په دغه تکبیر ولاړ تیت شو لمونځ یې نه ده صحیح بس بیا سلام وګرځوو، ما لمونځ وکړ اوسره له دې چې بېخي صحیح نه وي.

نومطلب داچې دا کمزوري ده وجه یې بنیادي غلطې نفقې اوغلط خوراکونه دي.نو باید چې ډېر احتیاط وشي، که مُلا ده. که امي ده که طالب ده باید ډېر احتیاط وکړي،مونږ والله که ګټلي وي، ټکټ مونه ده اخیستی، هیڅـا نه ده اخستی ،ماسوا لـه هغو خلکو نه چې حضرت نبي کریمﷺ چې زیری ورکړی چې فلانکی فلانکی به په جنت کې وي،هغه خو په حدیثو ثابتـه ده، خـود چا په باب کې خو دغه فیصله نشي کولای اوکه څوك په دغه دوکه شو چې زه مُلا یم، طالب یم یا پیر یم ، مجاهد یم، ولاړ دغه تباه شو، نوباید ټول په ډار کې واوسو. لـه خوراك څښاك او اعمالو سره باید احتیاط وکړو ،بیا امید د رحمت شته چې خدای ﷻ به رحمت وکړي ،بیا به مو په ژوند کې هم برکت وي، په کور کې به مو هم برکت وي.

**وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین**

# (۵۱) مجلس

## د دین ارزښت او له علماوو څخه پوښتنې کول

## د فی سبیل الله مصداق

بنیادي شی په ترمذي شریف کې د جهاد په فضائلو کې احادیث راغلي دي چې څوك دخدای پاك ﷻ په لار کې ووځي دهغه څومره ثواب ده ؟ اوس فی سبیل الله چې په آیاتونو اواحادیثو کې ذکرکېږي دهغه مصداق دمفتي صاحب ( منهاج السنن ) لیکلی چې فی سبیل الله د خدای پاك په لار کې وتل ، مجاهد چې له خپل کور څخه ووت د اِعلاء کلمة الله له پاره ووت ، په سنګر کې پروت ده، په بندر کې پروت ده، د جنګ په صحنه کې پروت ده ، دده ژوند ته ټول فی سبیل الله ژوند ویل کېږي ترڅو چې دی بېرته خپل کور ته راځي. حاجي چې د حج په سفر ووت ترڅو چې د حج له سفر نه فارغېږي دا ټول سفر دحج ته فی سبیل الله ویل کېږي. څکه د خدای ﷻ د دین په خاطر یې سفر کړی ، ددغه وطن نه چې سړی ټکټ کوي په یو لکه څو زره روپیو ویزه داخلوي ، دی څو د تماشې له پاره نه ځي څو دخدای پاك د یو فرض عبادت د ادا کولو له پاره ځي

نودغه وتل چې دحج په نیت څوك روان شو هم فی سبیل الله ورته ویل کېږي ترڅو چې بېرته خپل کور ته راځي.

عُمره کوونکی دخپل کور نه په دغه نیت روان شو چې ترڅو بېرته خپل کور ته راځي دغه ته فی سبیل الله ویل کېږي.

همدارنګه طالب العلم چې له خپل کور نه ووځي ترڅو چې خپل کور ته راګرځي دغه ژوند ته فی سبیل الله ژوند ویل کېږي. همدارنګه یو تاجر چې د حلال رزق د ګټلو له پاره ، نه د مال د زیاتولو له پاره. زمونږ زیاتره سفرونه د مال د ډېرولو له پاره دي. رزق مو وي ، خو بلډنګونه ، مارکیټونه جوړوو، خو په دین خبر نه یو. له ضرورت زیات تجارت او مال ګټل په هغه وخت کې روا دي چې دخدای ﷻ په دین به خبر وي، په کومه اندازه چې دی هغه علم ته ضرورت لري او خپل څلورویشت ساعته ژوند ورباندې د دین د ارشاداتو مطابق تېر کړي او دی هغه علم حاصل نه کړي او دنیا او مال ګټي دا ورته نه دي جائز. خوکه دومره خبر وي چې هغه خپله زندګي ورباندې تېرولای شي نو بیا په دغه صورت کې د مال ډېرول او زیاتول یو مباح کار دی. نو اصل مطلب ته راګرځو چې که یو تاجر د حلال رزق دحاصلولو له پاره له کور څخه ووت تر څو چې دی بېرته راګرځي دا هم فی سبیل الله دی.

## د جمعې لمانځه ته تلل څومره ثواب لري؟

اوس دا د خدای په لار کې وتل د جمعې د لمانځه له پاره هم دي. يو صحابي ﷺ ته يو سړی په مخه ورغی، دی د جمعې لمانځه ته روان ده، دی ورته وايي : ته چې دغه د جمعې لمانځه ته روان يې دا في سبيل الله دي. ما له نبي كريمﷺ څخه اوريدلي دي چې: كوم قدمونه چې د خدای پاكﷻ په لار كې كښېودل شي او بيا هغه قدمونه په خاورو ګردجن شي نو دغه قدمونه به د دوزخ اور مسح نه كړي. يعنې د خدای پاكﷻ د دين په خاطر چې ستا په بدن كوم ګردونه لګېدلي دي ، دا ګردونه او د جهنم اور نه سره يوځای كېږي. نودغه د دين ټولو لارو چارو ته في سبيل الله ويل كېږي، نو كه يوڅوک خاص دخدایﷻ د رضا له پاره جمعې ته ځي، عُمرې ته ځي، جهاد ته ځي، حج ته ځي، د علم په حاصلولو پسې ځي نو ددې اعمالو قيمت او درښت له الله تعالیﷻ سره دومره زيات ده چې كه په دې لاره كې په يو ځا باندې ګردونه پرېوځي په هغه به د جهنم اور حرام وي. اوس چې يو څوک خپل ټول ژوند پكې تېر كړي، لس كاله، دولس كاله په طالبي كې تېر كړي اوپه مياشتو مياشتو وخت په جهاد كې ولګوي ، دحج په سفر كې ځلوښت اويا زيات و كمې شپې هلته تېرې كړي؛ نودا ټول

ژوند ، په دې ژوند کې خوراک، څښاک، ناسته ولاړه. دا ټول عبادت بلل کېږي. حتی که په دغه لاره کې څوک مړ شي، طالب د سبقونو په دوران کې مړ شو، نو الله تعالی ﷻ دغه انسان ته د شهادت مقام ورکوي. که مجاهد د جهاد په سفر کې په خپل مرګ مړ شو نو الله ﷻ ورته د شهادت مقام ور په برخه کوي. د الله تعالی ﷻ په خزانو کې څه کمی نشته.

که یوڅوک د الله تعالی ﷻ د دین په خاطر له کوره ووت، مثلاً اوس مونږ د جمعې لمانځه ته ځو، نو مسئله داده چې که د کور خواته جومات وي نو سړی دې بل جومات ته نه ځي، خو که په دغه نیت بل جومات ته روان شو چې هلته نېک خلک او علماء او اولیاء الله دي، یا په هغه جومات کې ډېر خلک سره یوځای کېږي، کېدی شي چې دهغوی د دعاګانو او لمونځونو په برکت زما دعاګانې او لمونځ هم د قبولیت مقام ترلاسه کړي نو بیا دغه سړي ته له خپل جومات نه هغه بل ته تلل جائز دي. نو اوس چې دلته ځي دا څومره قدمونه چې ده اخیستي دي نو په هر قدم الله ﷻ دغه شخص ته یوه یوه نیکي ورکوي، یوه یوه ګناه ورته معاف کوي. نو چې یو څوک څومره لرې ځي دغومره ډېر ثوابونه به یې په برخه کېږي.

د مسجد نبوي په څنګ کې یو څه ځمکه خالي پاتې وه، نو یو قوم غوښتل چې خپل کورونه را بار کړي او په دغه خالي ځای کې آباد شي ددې له پاره چې جومات ته نږدې وي، کله چې نبي کریم ﷺ ددوی له دې ارادې څخه خبر شو نو نبي کریم ﷺ ورته

وويل: (دِيَارَكُمْ تَكْتَبُ آثَارَكُمْ) په خپلو کورونو کې اوسېږئ ستاسې قدمونه به ليکل کېږي، نو چې کورونه مو څومره ليرې وي قدمونه به مو زيات وي او په هر قدم باندې خدای پاک ﷻ يوه يوه نيکي درکوي او يوه يوه ګناه مو معافوي. او يوه يوه درجه مو لوړېږي.

## دخدای پاک ﷻ په لارکې مال لګول څومره ثواب لري؟

بيا که بالفرض په دغه (فی سبيل الله) کې له يو چا څخه مال مصرف شي نو د مصرف يې دوه لارې دي:

اول دا چې ته په خپله په کور کې ناست يې خو روپۍ سنګر، مدرسې، يا حرم شريف ته يې ولېږې نو دا د خدای ﷻ اود حضرت نبي کريم ﷺ فرموده او وعده ده چې ددې مصرف کوونکي له پاره به يو په اووه سوه (۷۰۰) ثواب ورکول کېږي.

او که يو څوک په خپله حج ته ځي او کرايه لګوي، جهاد ته ځي خپل مال مصرفوي، علم حاصلوي او خپل مال مصرفوي نو دغه شخص ته الله تعالی ﷻ د يوې روپۍ ثواب يو په اووه لکه (۷۰۰۰۰) ورکوي. الله تعالی ﷻ ډېر رحيم او مهربان ذات ده، نيکي ډېره په اسانتيا سره پيدا کېږي خو چې نيت ته مو پام شي، چې په دې پوه شو چې د څه له پاره خو، غرض مو څه ده؟ کله چې مو نيت صفا شي، چې د الله تعالی ﷻ د دين

دزده کړي له پاره څو . یا بالفرض د الله تعالی ﷻ د یو فرض حکم د ادا کولو له پاره څو ، د الله تعالی ﷻ د بندګي له پاره څو، نو کله چې په دغه نیت څو نو روپۍ او قدمونه به مو بې خایه نه وي ، ډېر داسې خلک شته چې د طالبي په فضایلو او درجو باندې خبر نه دي، نو له دې وجهې نه په خپل طالب ورور او زوی باندې خرڅه کوي او نه یې بل طالب ته څه ورکول له وسه وي.

## په دنیاوي تعلیم ولې دومره مصرفونه کوي؟

د دنیا خو بیا دا نظام ده چې که یو هلک کالج (پوهنتون) یا سکول (مکتب) ته داخلیږي نو له اول څخه واخله آن تر شپاړسم پورې چې له مشرانو څخه یې پوښتنه وکړې چې په یو یو هلک څومره مصرف راځي، څومره فیسونه ورکوي؟ د موټرونو کرایه یې څومره ده؟ د هغه کور او کوټې چې دی هلته پکې اوسیږي څومره کرایه ده؟ نو بې اندازې خرڅې ورڅخه کېږي. دا ولې؟ دا څکه چې دې خلکو دنیاوي ګټې په پام کې نیولي وي، چې زوی به مې ډاکټر شي، بیا به له یوه مریض څخه پنځه سوه فیس اخلي، لس یا شل زره روپۍ به ورځ کې راته راوړي، داسې ډاکټران هم شته چې د ورځې له مخې په لکونو روپۍ ګټي. نو ددې هلکانو مشرانو هغه دنیاوي

مفادات په پام کې نیولي وي، نو څکه په خپل زوی او ورور مصرف کوي، هغه مکتبي هلک هم په ځان مصرف کوي، څکه ددنیا ګټه یې په سوچ کې وي، چې که څومره ډېره خرڅه وکړم نو بیابه هلته زه ښه پوسټ اخلم، بیابه مې تنخواه هم زیاته وي، عائدات به مې هم ډېر وي.

که انجینیر یا پروفیسور شي هم دغسې ګټه یې وي، خو کله چې طالب عاجز او غریب له کور څخه وځي، نو د دنیا د ګټلو سوچ ورسره نه وي، چې زه به بیا داسې پیسې ګټم، نه یې پلار او ورور او بل کوم دوست ته داسې په فکر کې ورځي چې طالب جان به مې وروسته ماته په ورځ کې لس زره روپۍ وګټي، په طالب باندې چې پلار لس، دولس کاله خرڅه وکړي، بیاهم چې کله فارغ شي نو زر روپۍ یې تنخواه وي، چې ډېره زیاته تنخواه یې شي بیاهم تر دریو زرو نه پورته کېږي، یو نیم داسې به وي، چې تنخوا به یې زیاته وي.

اوس نو چې ددنیا ګټلو ته یې ورور یا پلار وګوري نو وایي چې په طالب جان هسې بې ځایه خرڅه کوو، څکه چې له فراغت څخه وروسته به یې ایله بیله دوه زره یا درې زره تنخواه وي، په دې تنخاګۍ به زمونږ کوم کار جوړ شي ؟

خو دې ته یې بیا پام نه وي چې په دغه طالب چې زه کومې روپۍ مصرفوم ، نو الله تعالی ﷻ به ما هم دده د طالبي په ټوله زندګي کې ورشریک کړي، اود یوې روپۍ بدله او ثواب به

راته یو په اووه سوه راکړي، او که زه په خپله علم حاصل کړم او په خان باندې خپل مال مصرف کړم ماته به خدای ﷻ د یوې روپۍ په بدله کې اووه لکه راکوي، دومره ګټې چې دچا په ذهن او فکر کې ورشي نو بیا به یې په کالجونو او یونیورستیو کې دا خپل مال ولګوي ؟

زمونږ دا مطلب نه ده چې مونږ د کالجونو د تعلیم خلاف یو، د تعلیم خلاف نه یو خو تعلیم چې د شریعت په چوکاټ برابر وي، که عصري علوم دي او که دیني علوم ددې ټولو په جواز علماء قائل دي، حسد او بدبیني نشته، ددې دنیا نظام په دغو خلکو چلیږي، ډاکټر، پروفیسور، انجینیر ، ساینس دان دغو ټولو ته پکې ضرورت شته، دا تخنیکي سامان آلات ،ماشینونه ددوی د ساینس او ټکنالوجي نتیجه ده، چې دوی کوشش کوي نو دغه ددنیا ماشین آلات ټول برابروي، د دنیا نظام لکه دختګر چې مونږ خلاف نه یو خکه کور راته جوړوي نود ډاکټر به ولې خلاف یو ، نو مطلب مو په دوی اعتراض نه ده، خو خبره داده چې مسلمان باید خبر کړل شي ، دمسلمان دګټې او تاوان لارې باید وسنجول شي، د علماوو سره باید دا فکر وي چې دا روپۍ چې په دغه ځای لګوي اودا روپۍ چې بیاپه دغه بل ځای لګوي دا فرق یې ده، نور ګټه او تاوان ته یې ته په خپله وګوره. که ددنیا په ګټه کې څوک راته ووایي چې په فلانکي ځای کې ددغه شي دومره قیمت ده اودلته په دومره ده ، هغه ځای ته به ورځو چې زمونږ پکې ډېره ګټه وي، په اکثره ځایونو

کې د دریو ورځو د مېلو له پاره یو بازار جوړ شي، مخکې دښته وي او په دغو ورځو کې د یو دکان ځای په دوه زره یا درې زره روپۍ وي او دنیا د ګټې احساس د سړي سره وي، خپل دکان دلته پرېږدي او هلته ورشي، ځکه چې هلته ګټه ډېره ده. نو د علماء کرامو مطلب همدا ده چې خلک په دې پوه کول غواړي چې هلته دې ګټه ډېره ده او د دین او آخرت ګټه دې ده.

نو غرض دا چې دلته راتګ یا بلې مدرسې یا جومات ته یا نورو دیني مسلکونو ته تګ بې ځایه نه ده، باید خلک په دې پوه وي چې دا ناسته، مصرف، دا سترې تول بې ځایه نه دي. الله تعالیٰ ﷻ به په آخرت کې اجر ورکوي او نېکه ثمره به ورباندې مرتبه کېږي. او خصوصاً د دین زده کړه د دین بنه تعمیر غواړي، نوموړ چې د دنیا د بنه تعلیم له پاره کوښښ کوو هغه کالج او یونیورسټي ته ځان رسوو چې هغه ډېره ګټه پکې وینو، ځکه خو په هغه ځای کې دغه تعلیم حاصلیږي، په بل ځای کې نه حاصلیږي، خو دین دا په مدرسو کې زده کېږي، دا په جوماتونو کې زده کېږي، له علماوو څخه زده کېږي او علماء کرام دولس یا دیارلس کاله په طالبي کې تېر کړي بیا تر آخري ژونده پورې دغه د دین په خدمت کې وخت تېر کړي.

## د دورۀ حدیث ټول درسونه په یوائې ځان تدریسول

زه د سر د مرض له پاره ډاکټر ته ورغلی وم، نو دغه د خپلو درسونو حال مې چې ورته ووایه چې ټوله لویه دوره راسره ده، نو ډاکټر داسې تعجب کاوه چې دومره غټ کتابونه په یوه ورځ یو سړی برداشت کوي ؟ په دغو کالجونو کې چې ایم اې (M.A) دوی ورته وایي یعنې د شپاړسم سره برابره ده، هلته پروفیسران په ورځ کې یو مضمون وایي، بعضې داسې دي چې ډېر مشهور شي نو په جُمعه کې یو مضمون وایي، ځکه چې دا په دماغو باندې بوج راولي، نو دا چې تاسې دومره ټوله ورځ په یوه سر باندې درس کوئ نو طبعاً به درته تکلیف پیدا کېږي، نو ستا علاج دوا نه ده، بلکې راحت او آرام ده.

اوس مطلب مې دا و چې دغه مُلایان یو ځل په طالبي کې وخت تېروي ، بیا تر سپیین ږیرتوب پورې دومره تکلیفونه تېروي چې د دنیا پروفیسران یې نه شي تېرولای نو په دین به خود دوی خبر وي، چې عالم دېرش یا څلوېښت کاله مسلسل په دې کار لګیا وي کتاب کتل او ویل دي ، هغه چې په دین پوه نه وي نو بل څوک به پوه شي ؟

## د جوماتونو زیاتره امامان له مسائلو څخه ناخبره وي

زه چې په اکثره ځایونو کې په امامانو پسې دربدلی یم نو په اکثره ځایونو کې حافظان امامان دي، یقین ده چې اکثره لمونځونه بې کراهیته نه دي، خودغه د جومات امام په مکروه هم خبر نه ده، او حضرت نبي کریمﷺ وایي (الاِمَامُ ضَامِنٌ) امام د ټول قوم ضامن ده، د ټول لمانځه مسئولیت دده په غاړه ده، خو دی ورباندې خبر نه ده، علم ورسره نشته، یواځې د قرآنکریم په یادولو کله علم حاصلیږي؟

له مونږ سره بیا د لمانځه ارزښت نشته، چې امام په پنځه سوه روپۍ پیدا کېږي نو ښه مُلا په دوه زره روپۍ څه کوو چې نیسو یې ؟ لکه مخکې مو همدغه خبر وکړه چې یو دکاندار د دوکان له پاره یو منشي په اته زره روپۍ نیسي چې څه ماهر منشي وي، په دې کار اوبار ښه پوه وي، یعنې د دنیاوي مفاداتو سړی په جګ قیمت نیسي، که بالفرض درې څلور ځایه کارونه وي، درې څلور منشیان ورته نیسي، دغومره تنخواه ورکوي، خو یوه څلوېښت کوره یو مُلا نیسي او هغه یو مُلا ته دا کوشش کوو پنځه سوه روپۍ تنخواه یې وي، داسې مُلا چې نه وي چې مصرف یې دېر شي ، اوس هغه مُلا چې د پنځو سوو مُلا ده دهغه په خپله لمونځ نه ده زده، نه په مکروه

خبر وي اونه په مفسداتو خبر وي، زه چې په کوم جومات کې اوسېږم زما چې دا څومره وخت ووت که یو لمونځ هم وي له مکروه څخه خالي نه ده، له سنتونو خو بېخي خبر نه ده، چې په سهار کې څومره قرائت ویل سنت ده، په ماښام یا ماخوستن کې کوم ویل کېږي او خفیه خو مونږ اورو نه، چې هلته څه پکې وایي؟ خو په جهري لمانځه کې کله دوه آیاته (آمن الرسول) په یو رکعت کې ووایي اوبیاپه دوهم رکعت کې چې په اتفاق د ټولو ائمه وو که دوهم رکعت په اول اوږد شي مکروه کېږي، په دوهم رکعت کې بیا اوولس آیاته، کله پنځلس آیاته ووایي، څکه په اول کې آیاتونه دوه دي، خو وقفې پکې ډېرې وي، نو دې غریب په دې خبر نه دی.

نو له مونږ سره دا احساس نشته، دا فکر نشته، نه مونږ خبر یو نه مُلا خبر ده.

اصل مطلب خبره داده چې نن سبا چې په دې خلکو گمراهي ډېره شوه هغه داده چې مونږ د دین مرکز ته رجوع نه کوو، چې هغه مدرسه ده، علماء دي، له هغوی سره باید زمونږتعلقات وي، تر څو د دین په احکامو خبر شو، له فرائضو اوواجباتو خبر شو، دا عمل په مونږ کې نشته، د پښتو متل ده چې: څرنگه غر هغسې یې کربوړي. څرنگه یې چې امام وي همغسې یې مقتدیان وي، په روژه کې امام په دې خوشاله وي چې مقتدیان یې صفت وکړي چې فلانکي امام په دومره کم وخت (یو پاو)

• کې ټول فرض، سنت، تراویح او وِتر لمونځ پوره کړ. دوی په دې خوشاله وي چې ټول لمونځ په یوه پاو کې خلاصوي.

## د یو امام عجیبه واقعه

یو وخت کې ډېر مخکې زه او زما مشر ورور د روژې په منځ کې یو ځای ته تللي وو، هلته یو امام و، نو که قسم درته وکړم پرې حانث به نه شم، په الحمد لله کې د الحمد څخه نیولې تر ولاالضالین پورې یو ټکی هم نه صحي کېده. په یوه پاو کې یې فرض، واجب او تراویح ټول خلاص کړل. زمونږ مشر ورور ورته وویل چې: د تراویحو او نور فرض لمانځه چې دې یو ځل نیت وتاړه نو بیا د تراویحو او فرضو ترمنځ څه فرق نه پاتې کېږي، په نفلو او سنتو کې هم قرائت ، قیام، رکوع او سجده فرض ده، تعدیل د ارکانو پکې واجب ده، په دې کې بیا د فرضو او سنتو فرق نشته، خو دغه امام په دې خبره ځان پوه نه کړ. دا مسئله ده چې که یو څوک معلومات نه لري، نو اول وار به یې په پته پوه کړې، که بیا نه اصلاح کېده نو بیا به یې دخلکو په مخکې ورته وایې. په دوهم ځل چې دغه امام په تراویح کې بیا خپل عمل تکرار کړ نو د خلکو په مخکې یې ورته وویل چې دا لمونځ داسې مکوه ، قرائت دې بالکل نه صحي کېږي، نو ده وویل چې ما خپله شروط صلوة ویلی ده، زه دغه ثواب ته

راغلی یم، زمونږ په ورور یې دا ګمان نه کاوه چې دا به طالب
وي حال داچې هغه مشر طالب و، نو زمونږ ورور په مختلفو
کتابونو یو څه حوالې ورکړې، ورته په غصه شو، کله چې امام
صاحب پوه شو چې دا خو طالبان دي، نو سهار وخت کې یې
وویل چې زه فلانکي ځای ته خم خپل کالي مې راوړم، دی به لا
خپل کالي راوړي.

په سبا ورځ یې چې زه مخته کړم ، له مخکني لمونځونو نه
مو یو څه وخت پرې ورزیات کړ، کومې تراویح چې په یو پاو
کې خلاصېدې هغه مو نن په نیم ساعت کې خلاصې کړې،
کلیوالو وویل چې هغه بل امام صاحب خو داسې تکړه و چې په
یو پاو کې به یې له هرڅه خلاص کړو، او تا خو دومره اوږد کړ،
داسې ښکاري لکه دا لمونځ چې په مونږ او تاسې یو پېټی وي،
دا احساس له هیچا سره هم نشته چې دا لمونځ صحي شو او
کنه؟ خو بس چې دا لمونځ خلاص شي.

زمونږ او ستاسې په جوماتونو کې همدا خبرې وي چې داسې
ښه لمونځ کوي، داسې ښه او خوږ غږ یې ده، او چې کله ورته
وګوري نو لاسونه به یې پاس په سینه باندې نیولي وي، زیاتره
امامانو ته والله که به دمذهب درک وي، څوک داسې وي چې
په لمانځه کې په دواړو لاسونو خپلې جامې برابروي ، څوک په
ږیره کې لاس وهي، سره له دې چې امام وي، له مونږ سره د
خپل لمانځه غم نشته نو د امام به راسره څه غم وي.

له کتابونو څخه دا مسئله ښکاره ده چې: د امامت تر ټولو لومړی حق دچا دی ؟ په ټولو کې لائق او احق د امامت هغه څوک ده چې ښه عالم او مُلا وي، که ټول علماء وي، په علم کې سره برابر وي، بیاهغه څوک حقدار ده چې ښه قرائت یې وي، که په قرائت کې هم ټول سره برابر وي، بیا چې څوک ښه پرهېزګار وي، او که په دې صفت کې هم ټول سره برابر وي، بیاچې څوک ډېر مشر وي نو هغه د امامت حقدار ده. بیا چې څوک ښه ښائسته وي، ځکه ښېک وجود په ښېکو اخلاقو دلالت کوي، د صورت حُسن د اخلاقو په حُسن دلالت کوي، تردې اندازې پورې چې که په ټولو صفتونو کې سره برابر وي نو چې د چا ښځه ښائسته وي بیا به هغه د امامت له پاره مخته کوي، ځکه چې د ښځې د ښائست له امله له ګناوو څخه ساتل شوی دی، په پردیو ښځو پسې یې نه سودا کېږي، نو د امامت په باره کې کتابونه تردې اندازې احتیاط بیانوي.

او زمونږ دا کوشش وي چې هغه څوک امام کړو چې نه په قرآن خبر وي ، نه په احادیثو خبر وي اونه یې اعمال له سنتو سره برابر وي، هرڅه یې که کول کوي به یې.

نو زمونږ اصلي نقصان داده چې له علماوو سره زمونږ تعلق نشته، که څوک غواړي چې له دین څخه خبر شي نو له علماء کرامو سره دې تعلق ساتي ، له دوی څخه باید د دین په هکله پوښتنې وشي، زه بار بار خپلو شاګردانو ته او علماء کرامو ته دا وایم اود نورو مدرسو طالبانو ته هم دا وایم چې: دغه

مدرسې اوطالبان، استادان ددغو عوامو مسلمانانو ورونو په مرسته او کومک روانې او چلیږي، دا چې دغه مسلمانان په یو بل خای کې تکلیفونه تېروي، مسافري برداشت کوي، لوږه او تنده تېروي او بیا له دې سره دوی دا خپل مال راوړي، عالم او طالب العلم ته یې ورکوي نو طالب او عالم ته هم ضروري ده چې دوی ته بیا دین ورزده کړي، دا د عوامو مسلمانانو په علماوو حق ده، لکه څنګه چې یوطالب په کوم کلي کې اوسیږي په هغو کلیوالو یې دا حق ده چې ډوډۍ به ورکوي، نو کلي هم دا حق لري چې له مولویصاحب څخه د مسئلو پوښتنې وکړي. که یو څوک له یو عالم څخه پوښتنه وکړي او دغه شخص ته ددغې مسئلې حل کولو ته ضرورت ولري او دغه عالم ته دغه مسئله معلومه هم وي او ورته یې حل نه کړي نو دقیامت په ورځ به یې د اور قیضه په خوله کې ور ولویږي. نو قوم په مُلا صاحب حق لري او مُلا صاحب په قوم حق لري.

د عوامو له مدرسو او علماوو اونېکو خلکو سره اخلاص دا د دوی دنیاوي تعاون ده، خود علماوو اخلاص داده چې له دوی سره په دین کې تعاون او همدردي ولري، اوس نوداچې حق مو دی نو تاسې هم باید په دغه حق پوښتنه کې ونه شرمېږئ!.

که مسئله مو زده نه وي، نو له ملاصاحب څخه به یې پوښتنه کوئ! حتی که ښځه وي ، هغه هم د دین د احکامو زده کولو ته مجبوره ده، حیض ورته پېښ شو، د حیض په احکامو خبره نه ده، د نفاس په احکامو خبره نه ده، د لمانځه فرائض او

واجبات ورته نه دي معلوم، نو اول به دغه ښځه له خپل مېړه څخه پوښتنه کوي، دا د دين مسئلې ځان ته معلومول دا يې په مېړه ددې حق ده، نو که مېړه يې عالم و نو هغه به ورته ځواب ورکړي او که عالم نه و نو ښځه دا حق لري چې ورته ووايي چې ورشه له مولويصاحب څخه زما له پاره پوښتنه وکړه، ځکه د ښځې د باندې وتل جائز نه دي، نو مېړه د ښځې د مسئلې دحل کولو له پاره مجبوره ده او هغه عالم ته به ځې تر څو ددې ښځې دا مسئله حل شي.

اوس دا خو مسئله ده اود هر سړي په کور کې لور، خور او ښځه ده ، نو چې کله مسئله پېښيږي نو حل کول يې هم ضروري دي، که مېړه ملا نه وي او دا هم ورته ووايي چې له مُلا څخه هم پوښتنه درته نه کوم، نو بيا له دې څخه وروسته دې دا ښځه له خپل مېړه څخه اجازه وغواړي چې ماته اجازه راکړه تر څو زه مولوي صاحب ته ورشم ، خو هغه هم د شريعت د حدودو په چوکاټ کې د کلي يو سپين ږيري عالم ته دې د خپلې مسئلې وضاحت وکړي او له هغه څخه دې د حل لاره وغواړي. په دې ځای کې په مېړه باندې واجب دي چې ښځې ته به اجازه ورکوي او که داسې وي چې مېړه اجازه نه ورکوي اودا د مسئلې حل کولو ته مجبوره وي ، ضرورت يې زيات وي، نو په دې صورت کې د مېړه له اجازې نه بغير هم تللای شي، خو د شريعت د حدودو په چوکاټ کې. چې د فتنې وېره نه وي. له سړيو سره يې کوم خلطيت رانه شي، مګر عالم ته دا جائز نه

دي چې هغه له مسئلې څخه مخ واړوي اوورته ووايي چې زما نه ده زده. ځان نه شي خلاصولای. عوام په عالم باندې دا حق لري چې له ده څخه به پوښتنه کوي، که يې نه وه زده، بل ځای نه دې ولاړ شي پوښتنه دې وکړي.

ماته داسې مسائل هم پېښ شوي دي چې زما به زده نه وو، په بل کوم مشر عالم پسې به تلم، هلته به مې له هغه څخه پوښتنه کوله. ځکه چې زه د کلي امام وم، د کلي په ما حق وو، اوس چې زما زده نه وي،نو ده ته داسې نه شم ويلای چې زما زده نه ده، او بل عالم ته ولاړ شه او له هغه څخه پوښتنه وکړه، بل عالم خو به زه ښه پېژنم، او عوام خو هغه مُلا ښه عالم بولي چې ښه تقرير ورته کوي، او بيا وايي چې ياره فلانکی ډېر ښه مُلا ده، مُلا په تقرير نه پېژندل کېږي، تقرير هرڅوک ښه کولای شي، دا سياسي خلک (سياست مداران) دومره ښه تقريرونه کوي چې داسې تقرير ښه شيخ الحديث هم نه شي کولای، خو که بيا دې له همدې مقرر صاحب څخه پوښتنه وکړه چې د لمانځه څو فرائض دي، څو يې واجبات دي ؟ بيا په هېڅ هم خبر نه وي. نو ښه عالم چې پېژني عالم به يې پېژني (اِنَّمَا يعرفُ ذُوالفضلِ مِنَ النَاسِ ذَوُهُ) داچې فلانکی ښه مُلا ده بايد له هغه نه پوښتنه وکړم.

نو د دين د احکامو پوښتنه درباندې فرض ده، کوئ به يې، او په علماوو باندې مو د احق ده چې له هغوی څخه به پوښتنه کوئ او عالم به تاسې ته ځواب درکوي.

خو موږ داوداسه، غسل یا د لمانځه په پوښتنه یا د کور د ښځو دمسائلو په پوښتنه کولو شرمېږو ، دغه شرم دې ځای ته ورسولو چې خدای مکروه جهنم ته به ځو. که د دین د احکامو په پېژندلو کې څوک شرم وکړي هغه به له بریادي سره مخ کېږي.

دحضرت نبي کریمﷺ تره چې مخکې دی کافر هم و، له نبي کریمﷺ سره ډېرې زیاتې ښېګنې هم کړې دي، دده تر مرګه پورې کفارو په حضرت نبي کریمﷺ ظلم نه شوای کولای، خود زنکدن په وخت کې چې ابوطالب مریض ده، حضرت نبي کریمﷺ دده کورته ورغی ،هلته ابوجهل بدبخته او امیه بن خلف هم ناست دي، حضرت نبي کریمﷺ ورته وایي چې ای کاکا ! له ماسره دې ډېر ښه کړي دي ، یواځې یوه کلمه زما په غوږ کې ووایه چې د قیامت په ورځ درته زما د شفاعت لاره خلاصه شي، اود خدای پاکﷻ په حضور کې دې زه شفاعت وکړم، ځکه مسلمان خو د کافر له پاره شفاعت نشي کولای، ابوجهل لعین اودا بل کافر ( امیه بن خلف ) ورته وایي چې ګوره د نیکه دین پرې نه ږدي، هغه به ورته هغه خبرې کولې او ده به ورته دا ویل، په آخر کې ابوطالب حضرت نبي کریمﷺ ته دا وویل چې: دا شرم ده چې زه دپلار او نیکه دین پرېږدم، خلک به وایي چې : د مرګ نه ووېرېده، نو ځکه کلمه نه وایم، که نه ښه پوهېږم چې ستا دین حق ده، د شرم له وجهې نه هغه کافرله دنیا نه ولاړ.

مونږ د دین په کار کې شرمېږو، د بدن په علاج کې مونږ ته که داسې تکلیف پېښ شي چې د عین شرمګاه په ځای کې وي په هغه خپل شرم سترګې پټوو، او خپل عورت ډاکټر ته لوڅوو، ځکه خو د بدن د علاج راسره غم وي.

هغه خپله لور، ښځه ، مور چې څوک اسلام او غیرت ولري دا نه شي برداشت کولای چې څوک یې تیکري ته وګوري ، قسم ده که به یې د چا غیرت ومني ، خو د ضرورت له وجهې نه چې تکلیف ورته پېښ شي دغه خور او لور او ښځه ډاکټر ته ور ولي ، ډاکټر یې ګوري کنه ؟ دا شرم ټول تر پښو لاندې کوو او کنه ؟ حتی ډاکټر یې په ځېټه ورته لګیا وي، تردې چې ډاکټر د اپرېشن ځای ته تا هم نه ور پرېږدي ،ډاکټر او مریض سره پوهېږي، چې څرنګه یې کوي ، داټول شیان برداشت کوو ، دا ولې ؟ ددغه درد غم راسره وي، چې ښځه مور او لور مې مړه نه شي، حتی د ښځې په مسانه کې ډاکټر لګیا وي اپرېشن کوي، مونږ ورباندې خبر نه یو، عورت یې ټولویني او کنه ؟

که نه ښځه خو له سر نه تر نوکانو پورې ټول بدن یې عورت ده ، د ښځې قبر چې معلوم شي، چې داد ښځې قبر ده، او هډوکي یې معلوم شي نو هغو هډوکو ته کتل نه دي روا. د سړي له نامه لاندې چې کوم عورت ده اوبه مونږ باندې له نامه لاندې وبنستان خرییل لازم دي، دغو خرییلو وبنستانو ته د سړي کتل جائز نه دي، له دې وجهې نه دې په عامو غسل خانو کې

نه غورځوي، چې نور مسلمانان په ګناه اخته نه شي دغه وهښتان دې پټ کړي.

اوس چې خبره دومره د شرم ده، چې د عورت وهښتان به هم پټوي، خود مرض له وجهې ، د درد له امله مونږ ډاکټر ته هم عورت لوڅوو. خور، مور او ښځه او لور هم لوڅوو، شرم شاته پرېږدو، خو د دین په مسئله کې بیا شرمېږو، حال داچې مولوي صاحب یې نه په عورت ګوتې وهي او نه پوچ او بد رد ورته وایي او نه فیس اخلي، نه نمبر وي چې انتظار به ورته کوي، هېڅ شی هم نشته پکې، خو په دې باندې شرمېږو چې دمولوي صاحب نه پته پوښتنه وکړو، د حیض یا نفاس په مسئله کې چې ښځې ته داسې تکلیف ده، یا ماته داسې تکلیف ده، په دغه مونږ شرمېږو، دغه شرم مونږ له دنیا څخه جاهلان تېر کړو، اوپه دغسې جهل کې واقع یو.

نو په مونږ او تاسې دا لازمه ده چې له علماوو نه دمسائلو پوښتنې وکړو، دغه عالم ته چې له کوره دمسئلې د پوښتنې په نیت ور روان شوې دغه زندګي دې فی سبیل الله ده، چې ددغه ځای نه حقانیه اکوړه خټک ته پسې ځې، کراچۍ ته پسې روان یې دا ټول تګ دې فی سبیل الله ده، دا سفر دې ټول غټې غټې ثوابونه لري. اوس نو مطلب مې داده چې ټول دین سره زر ده.

حضرت امام شافعي رحمه الله د امام صاحب په مناقبو کې چاته وایي چې : (أَعِدْ ذِكْرَ نُعمانٍ لنا فَاِنَّ ذِكرهُ هُوَ المِسک ما

کړتهٔ یضوعوا ) ګورئ ! امام شافعي صاحب د بل مستقل مذهب څښتن ده، هغه بر حق علماء دي، نو دی وايي چې : د امام صاحب مجلس راته کوه ، ځکه د امام صاحب خبرې دا مُشک دي چې څومره یې موښې خوشبويي یې زیاتیږي، مثلاً په بوتل کې عطر دي، پنځلس کاله پراته وي، تاته یې بوی نه درځي ، خو چې سر یې خلاص کړې نو څرنګه بوی یې شروع شي، نو چې کله یې په بدن ولګوې نو بوی یې زیاتیږي، بیاکه بنه عطر و تر څو شپو دوام کوي ؟ اوس نو دا دین ټول دغسې شی ده ، چې په دین څومره خبرېږې دغومره ثوابونه دي، څومره چې عمل ورباندې کوې دغومره ثوابونه دي، څومره چې تکلیف پکې تېروې دغومره یې ثوابونه دي، دخدای پاک ﷻ په خزانو کې خو څه کمی نشته،دا چې دنیا پیدا ده ، څومره انسانان یا حیوانات او څومره مخلوقات چې الله تعالی ﷻ د قیامت تر ورځې رزق ورته ورکوي دهغه ﷻ له خزانو دومره شی هم نه شي کمېدای، د ستنې دسپم په اندازه باندې ختمېدل نه لري، په قیامت کې هغه جنتي چې هېڅ عمل یې نه وي کړی یواځې کلمه یې ویلې وي اود جهنم نه چې راووځي داسې تک تور شوی وي لکه د اور سکاره، حضرت نبي کریم ﷺ وايي: تر ټولو وروستنی سړی چې جنت داخلیږي دغه سړی به وي، نو په جنت کې به د دنیا په اندازه لس چنده ځای ورکوي، نو خزانې یې ډېرې دي، دومره جنت ده لکه دا اووه واره اسمانونه او ځمکې چې سره یوځای کړې، په یوه حدیث

شریف کې دي چې په جنت کې یوه یوه ونه دومره ده چې په اس سپور سړی اویا کاله ور څخه لاندې مزل وکړي ددغې ونې شاخونه او سوری نه خلاصیږي، نو د الله تعالیٰ ﷻ خزانې نه خلاصیږي، دا زره ته مه غورځوئ چې دا ثوابونه څرنګه ورکوي ؟ هغه یې ورکولای شي.

کمی په مونږ کې ده، چې مونږ اصلاح شو، نود انعاماتو لاړې شروع دي، بیا په کم عمل دومره غټ غټ ثوابونه ورکوي چې تر حده به زیات وي، هوکې ! خو نیت غواړي، عقیده او اخلاص غواړي چې د خدای ﷻ د رضا له پاره وي.

## دحضرت نبي کریم ﷺ دهجرت لنډه واقعه

حضرت نبي کریم ﷺ او حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ماخُستن د شین آسمان لاندې چې وریخ نشته اوټول ستوري ځلیږي، نو حضرت عائشه رضی الله عنها له نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه کوي چې یا رسول الله ﷺ ! ددې ستورو په اندازه نیکي به د چا وي ؟ نبي کریم ﷺ ورته وایي چې: هو ! دحضرت عمر رضی الله عنه همدومره نیکۍ دي، د حضرت عائشې رضی الله عنها په زړه کې څه ور وګرځېدل چې دحضرت عمر رضی الله عنه ثوابونه زما له پلار ( حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ) څخه هم زیات دي، نو حضرت نبي کریم ﷺ ته یې وویل چې: د صدیق اکبر رضی الله عنه څه مرتبه او مقام ده ؟

نبي کریمﷺ ورته وویل چې: دحضرت عمرؓ د ټول عُمر عبادت دحضرت صدیق اکبرؓ له هغې یوې شپې سره نه ده برابر کومه شپه یې چې له ماسره په هجرت کولوکې تېره کړې ده. کله چې کفارو ددوی د قتلولو اراده وکړه ، کفارو ویل چې دا خلک خو ورځ په ورځ ترقي کوي او مخ په وړاندې روان دي نو ددوی مخنیوی په کار ده، لکه نن سبا چې د یو ښه انسان مخنیوی کېږي، او مسلمان یې مخه نیسي، ځان ته به مسلمان هم وایي، خو د خیر د کارونو مخه به نیسي، له کافر نه خو ګیله نشته، ځکه چې هغه خو مو هسې هم دښمن ده، نو په ( دارالندوة ) کې یې مشوره وکړه، ابلیس لعین هم ورته راغی، وې ویل چې زه خبر شوی یم چې تاسې له دې سړي نه ډېر په تکلیف کې یاست، زه هم له تاسې سره په دې مشوره کې شریک یم، نو څه وړاندې کوئ ؟ یو وویل چې: بندي به یې کړو، دومره خوراک به ورکوو چې له مرګ نه پرې خلاص وي، نور خلک به یې له دعوت نه خلاص شي، ابلیس بدبخته ورته وویل چې: دا څه خوندوره مشوره نه ده، ځکه دده داسې ملګري دي چې په ده باندې ځان قربانولو ته هم تیار دي، بیابه یې په زور درځخه خلاص کړي. بل یو کافر ورته وویل چې: له وطن نه به یې وشړو، ورک به شي، څوک به یې نه پېژني، ابلیس لعین ورته وایي چې: نه ا په دې کې هم تاسې خطا یاست، تاسې دده خوږو خبرو ته نه ګورئ ، مجلس یې څومره خوږ وي، څومره ښه اخلاق لري ، دا که بل وطن ته ولاړ شي

هلته به شناخت پيدا كړي، ملګري به يې پيدا شي، بيا به په تاسې حملې كوي. ابوجهل لعين وويل چې: د هر قوم له هرې پښې نه دې يو يو ځوان له تورې سره راشي ،لس دولس پښې دي، دا ټول دې په يو وار داسې تورې ور واچوي لكه يو سړى چې يو ځوک وهي، نو چې په يو وار يې شهيد كړي، دده كورنۍ (بني هاشم) له ټولو عربو سره جګړې او بدي ته زړه نه شي ښه كولاى، او كه پور او تاوان (ديت) يې غوښتنه هغه به ورته ور كړو.

شيطان لعين وويل چې: دا ډېره ښه رايه ده. خداى ﷻ حضرت جبرائيل عليه السلام راولېږه او حضرت نبي كريم ﷺ ته يې امر وكړ چې نور له دې ځايه هجرت وكړه . حضرت صديق اكبر رضي الله عنه څلور مياشتې ددې حكم په انتظار و، قصه ډېره اوږده ده.

مطلب دا چې په هغه سفر كې چې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ورسره روان شو، كله به يې د حضرت نبي كريم ﷺ څخه مخكې مندې وهلې، كله به ورڅخه شاته پاتې كېده، رنګ يې تک زېړ شو، د ډار او خوف اثر ورباندې ښكاره شو، حضرت نبي كريم ﷺ ورته وايي چې: ابوبكره! ولې داسې وارخطا يې ؟ دى ورته وايي چې: يارسول الله ﷺ! كله راسره دا فكر پيدا شي چې كفار و مخكې مخه راته نه وي نيولې نو څكه مخته كېږم چې كه هغوى څه اقدام كوي چې ته خلاص شې او زه ستا په مخكې شهيد شم، كله بيا دا سوچ راسره پيدا شي چې كفار به د شا له

لوري راپسي راشي ، زه به مخکې یم تابه رانه شهید کړي، نوځکه بیا شاته درځخه پاتې شم. چې ما دې شهید کړي خو چې ته پاتې شې، هلته په هغه غار کې یې چې نبي کریمﷺ ته ځای برابراوه په خپل مبارک لاس یې ځای ورته برابر کړ، خپل پوستین یې ورته واچاوه، دی حضرت نبي کریمﷺ ته وایي چې: ته خمله او زه به پیره درته کوم، نو هغه یوه شپه چې ده په هجرت کې ورسره تېره کړې نو د حضرت عمرؓ د ټول عُمر عبادت له هغې یوې شپې سره نه ده برابر.

زمونږ د نن سبا وخت خلک راپورته شي او وایي چې : امام صاحب څوک و ،هغه هم یو مُلا تېر شوی ده، کم بخته لږ فکر وکړه ،ته په چا اعتراض کوې ؟ په هغه چا لګېږې چې شپه ورځ یې د دین په خدمت کې تېره کړې، په کوم ځای چې امام صاحب رحمة الله علیه وفات شوی، په هغه ځای باندې ده مبارک اویازره واري قرآن کریم ختم کړی. زه او ته هغه مقام او مرتبې ته رسېدای شو؟

مطلب داچې له دین څخه خبرتیا، له دین سره تعلق ذا هغه وخت حاصلیږي چې زمونږ له علماء کرامو سره تعلق مینه اومحبت وي، نو څومره چې مو وس وي په خپله علاقه کې کوشش کوئ چې ښه مُلا پیدا کړئ، چې ستاسې زامن په صحي طریقه تربیه شي، په خپلو مسائلو کې له علماء کرامونه پوښتنې کوئ، په پوښتنه کولو باندې مه شرمېږئ، نو خدای

تعالی ﷻ مهربانه ده چې زمونږ ددغو کوششونو موافق مونږ ته ښه عوضونه او ثوابونه راکړي.

الله ﷻ شاهد دی چې په دې خبرو سره مو نور څه مطلب نه دی، یواځې هغه خپل مسئولیت چې له خپلو اسلافو او بزرګانو څخه راته راپاتې دی چې هغه د خلکو اصلاح کول یواځې همدا مسئولیت مو سرته رسول مطلب دي.

## زمونږ پخوانیو مشائخو څومره تکلیفونه تېرول؟

زمونږ داسې مشائخ وو چې په ټول شواروز کې به یې دوه ساعته خوب کاوه، او چې په سجده به یې سر کېښود تر هغې به یې له سجدې سر نه راپورته کاوه ترڅو به یې چې د سجدې ځای له اوښکو نه وو ډک شوی. نن دهغوی یو څو نمونې راته پاتې دي، هغوی د مسلمه اُمت د سوچونو له امله په مرضونو اخته دي، د ډېرو حوادثو له امله د مسلمانانو سره د همدردي له امله په څو څو شپو کې خوراک نه کوي، بالفعل په دغو تکلیفونو اخته دي. او مونږ ته دهغوی نسبت کېږي، چې دا د فلانکي مُرید ده، نو مونږ وایو چې خدای نخواسته داسې نه شي چې دهغو بزرګانو خدمت دغسې ولاړ شي. د دین په خاطر یې ډېر تکلیفونه برداشت کړي دي، نو زمونږ په واسطه که دهغوی لاړ خدای تعالی ﷻ ژوندی وساتي دا به زمونږ له پاره ډېره لویه کامیابي وي، زمونږ استادانو له مونږ سره ډېر

تکلیفونه تېر کړي دي، الله تعالی ﷻ دې دهغو تکلیفونو په
بدل کې ددوی هر وېښته او هر هډوکی ته جنت الفردوس
نصیب کړي. دهغوی حقوق مونږ نه شو ترسره کولای، يوولس
دولس کاله مو طالبي کړې ده، دا د دوی د تربیې اثر ده، که
مونږ کوم وعظ او نصیحت، درس او تدریس ونه کړو،
نو دهغوی هغه کړې سعي به عبث ولاړې شي.

## مصنفینو څومره تکالیف تېر کړي؟

مصنفینو حضراتو چې دا کتابونه جوړ کړي دي، دا هم په ډېر تکلیف سره دا کار ترسره شوی، يواځې د هدایې مُلاصاحب چې دا هدایه لیکلې شپاړس کاله یې وریاندې تېر کړي دي. امام محمد بن اسماعیل بخاري چې د بخاري شریف کتاب تصنیف کړی څه باندې اووه زره احادیث پکې دي، ددې هر یو حدیث له پاره یې غسل کاوه او هر حدیث ته یې لمونځ او استخاره کوله، چې دحضرت نبي کریم ﷺ له طرف نه به ورته معلوم شو چې دا حدیث زما ده ،نو له هغې نه وروسته به یې بیا لیکه.

اوس علم ورک شو، ټولې رسالې دي، اردو کتابونه دي، نو هغه بخاري شریف چې امام بخاري په څو کاله کې تصنیف کړی، وضع او تراجم الابواب یې د نبوي ممبر او روضې

مبارکې ترمنځ کړی دی، نو چې اوس هغه بخاري شریف تدریس نه شي آیا هغه به ضائع کېږي او کنه؟ هغه هدایه به ضایع شي اوکنه ؟ همداسې نور کتابونه به ضایع شي او کنه ؟ دا چې پروفیسران یو مضمون په جُمعه کې وایي او مُلا ۷ یا ۸ کتابونه په یوه ورځ کې وایي، په یوه یوه حدیث کې چې زما اول کال ده ما ناچیز او ناقص هم یوه یوه جُمعه سبقونه پکې ویلي دي. درې څلور شپې مونږ په یوه حدیث کې سبق ویلی ، د حضرت نبي کریمﷺ احادیث مبارک جوامع الکلم دي، یوه خبره یې دټولې دنیا له پاره یوه قاعده ده . په یوه حدیث باندې ۱۱۱ مخه شرحه لګېدلې ده.

همداسې ۲۰، ۷۰، ۹۰ مخه شروحات په یوه حدیث لیکل شوي دي، دیوه کتاب څو څو شرحې لیکل شوي دي. همدارنګه تفاسیر په څو څو قسمه دي. زمونږ استادانو خبره کوله چې: زه چنی (چرې) وم اوزما استاد علامه شمس الحق افغاني صاحب رحمه الله قصه کوله چې مصر ته ولاړم، په کتاب خانه کې مې یوه شخص ته وویل چې: یو نادر او ناآشنا کتاب راته راکړه، دی وایي چې یو تفسیر شریف یې راوښود چې ۷ جلده یې یواځې په بسم الله لګیدلي و اوټول تفسیر ۳۰۰ جلده و. دا داسې کمې خبرې نه دي ، مونږ دهغو علماوو په زرمه حصه کې هم نه یو، مونږ چې دا ډېر غږېږو ،همیش په درس اوتدریس کې بوخت یو حرص مو داوي چې دا زمونږ غونډې خلک هم ورک نه شي، که داسې نه وي دا دین

اومذهب هم رانه ورکیږي، په دې تړله علاقه کې وګرځئ پوښتنه وکړئ چې د چا په مذهب یې؟ زما په فکر ډېر خلک به له دې پوښتنې هم خبر نه وي چې زه د چا په مذهب یم او مذهب څه شی ده. مذهب کومه رتبه ده، تقلید واجب ده، سنت ده، مستحب ده، یا د مذهب ثبوت په قرآن یاپه احادیثو کې شته که نشته؟ په دې خبرو خبر هم نه دي. والله که به دا د موجوده وخت اکثره ملایان هم پرې خبر وي، عوام خو لاڅه کوې، نو علم ورک کیږي، له دې وجهې نه باید ډېر کوشش وشي. چې یو ورځ یې هم وس کیږي د علم په اشاعت کې دې کوشش وکړي، هسې نه چې دا علم ورک شي. که نه بیا به تیارې ته ناست یو. دغه خرې پرې مدرسې دې آبادې وي، له دې مدرسو سره تعلق ساتئ، زما دا خبرې د خدای د رضا له پاره دي. یو ډاکټر ته که ورشئ، هغه ته فیس هم ورکړئ، که دوهمه خبره ورسره کوې نو درته وایي چې دماغ به نه راخرابوې، د دوایي د استعمال طریقه هم ذی درته نه ښیي، او درته وایي چې د باندې دواخانې والا به یې درته وښیي، دوهمه خبره درسره نه کوي، خودا علماء چې دا تکلیفونه تېروي داد روپیو له پاره نه دي، دا د دین په خاطر دي چې دا دین خدای تعالیﷻ ژوندی وساتي. نو مونږ اوتاسې ته دې خدای پاکﷻ په دغه مقدس دین باندې د عمل کولو توفیق راکړي، او خدایﷻ دې زمونږ او تاسې له علماء کرامو سره واقعي مینه اومحبت پیدا کړي. او خدای پاکﷻ دې هغه خلک چې د اسلام په جامه کې د دین اومذهب

او دنبکو خلکو خلاف لګیا دي او غواړي چې اسلام او مذهب داغجن کوي ، په مذهب ردونه کوي، الله تعالیٰ ﷻ دې ورته هدایت وکړي، خکه مسلمان ته به سړی د هدایت سوال کوي، اوکه هدایت یې په برخه نه وي اودین تخریبوي نوخدای ﷻ دې دده کور خراب کړي، هغه که مُلا وي، که پیر اويا هر څوک وي، چې د اولاد غم وويني بیا به د دین څخه ودرېږي.

## غیر مقلدین څومره بې ادبه دي؟

داسې خلک چې هغه د دین د خرابولو کوشش کوي، له مونږ سره د طالبي په وخت کې د کونړ د خوا غیر مقلدین طالبان وو، چې معمولي خبره به شوه نو ویل به یې چې : دا شرک ده، چې تا به ورته وویل چې: په دې مذهب خو ستا پلار اونیکه تېر شوي دي، آن تر امام صاحب پورې تول په مذهب تېر شوي دي. آیا هغه هم مشرکین وو ؟ دوی به ویل : هوکې ا هغه هم په شرک کې تېر شوي دي. نو چې یو څوک دومره بې ادبه شي چې پلار، مور اونیکه تول مشرکان بولي نو هغه بیا انسان ده ؟ خو زمونږ دومره ناپوهه خلک دي چې بیا همدغو خلکو ته غوږ نیسي، دهغوی خبره مني. اوهغه د دین او مذهب علماوو، د طریقت هغه حقاني علماوو اودهغوی خبرو ته بیا غوږ نه نیسي او بیاداسې خرافات وربسې وایي چې دا خو د چندو

علماء نه دي، بلکې غیر مقلدینو ته دامریکا له خوا ډالر ورکول کېږي، دهغو په پیسو چلیږي، خلکو ته هغه پیسې نه ښکاره کوي، نو اوس مُلایان د چندو والا دي، ته خومسلمان یې ، باید کومک ورسره وکړې. حضرت نبي کریمﷺ چنده کوله، دصحابهٔ کرامو‌رضی‌الله‌عنهم له پاره یې چنده کوله، کوم یو وفد به چې له کوم طرف نه راغی او مسکینان به وو دهغوی له پاره به یې چنده کوله. همدارنګه به یې دمجاهدینو له پاره چنده کوله. ددې دین له پاره حضرت نبي کریم ﷺچندې کړي دي. حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: ( الاسلامُ بدء غریباً و سیعود کَمَا بَدءَ فطوبی للغرباءِ ) دین اول هم غریب و، آخر به هم غریب وي، خوشحالي دې د غریبانو له پاره وي. ددې دین ساتل دغریبانو کار ده. دلته په دغه مجلس کې چې ناست دي دا ټول دهغو خلکو له جملې څخه نه دي چې بېګاه شراب څکي ، چې په زِنا یې وس ورسیږي زِنا کوي ، چې په (تي وي ، وي ، سی آر) یې وس ورسیږي هغو ته ګوري . داسې کسان بیا دلته نه شي ښکاره کېداى، دا دین ددغو غریبانو ده او غریب هغه چاته ویل کېږي چې په دین باندې روان وي، داسې نه چې په جیب کې یې روپۍ نه پیدا کېږي، چې د سنتو پابند وي، دغه ته غریب ویل کېږي، د شریعت په اصطلاح کې ( طوبی للغرباء ) معنا داده چې دغو خلکو ته په جنت کې د طوبی زیری دی، طوبی په جنت کې یوه ونه ده. دا طوبی ونه ددغو غریبانو له پاره ده، چې خاص یې په دین لاس نیولی وي، خلک تعلق ورسره نه ساتي.

الله تعالى ﷻ دې مونږ او تاسې هم د هغو غريبانو له ډلې
څخه وګرځوي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا
ومولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين





# (۵۲) مجلس

## د محبت علامې او د هغه ګټې

دمحبت په هکله مونږ مخکې خبره کړې ده، د چاچې له چاسره محبت وي، د هغه کردار، اقوال او افعال اودهغه اخلاق په ځان کې پيدا کوي.

اوس ددې خبرې وضاحت په کار ده چې له يوچا سره محبت کول څومره ګټه لري؟ له جناب نبي کريم ﷺ سره يې چې څوک محبت کوي دهغه اقوال اوافعال په ځان عملي کوي، يا له صحابهٔ کرامو ﷺ، علماء کرامو او ياهم له اولياء الله وو سره څوک مينه او محبت کوي ددې محبت څه ګټه ده ؟

د حضرت نبي کريم ﷺ څخه په بخاري شريف کې يو روايت دی چې: څوک له يو چاسره محبت لري، دی په خپله دومره ښه اعمال نه لري چې دهغو نېکو خلکو درجې ته پرې ورسيږي نو دا محبت دهغې مرتبې له خلکو سره څه ګټه لري، نو نبي کريم ﷺ ورته وايي چې: ( اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ ) سړی به له هغه چاسره وي چې له چاسره يې مينه محبت او علاقه وي.

په دې ځای کې محدثین کرام چې کومه بُنیادي خبره کوي هغه داده چې: یوه طرف ته هغه نېک شخصیت ده چې دخپلو نېکیو له امله خدای تعالیٰ ﷻ ورته لوړ مقامات ورکړي دي. او بل طرف ته دغه بل شخص ده چې دومره نېک اعمال یې نه دي کړي، خو په نفسِ محبت سره تا له هغوی سره یوځای کوي، ددې څه وجه ده ؟ نو ددې یوه وجه داده چې: الله تعالیٰ ﷻ د دنیا د پیدایښت نه څو زره کاله مخکې یو کتاب لیکلی، په هغه کې یې دالیکلي دي: (اِنَّ رَحْمَتِیْ سَبَقَتْ غَضَبِیْ) زما رحمت زما په قهر او غضب باندې مخکې ده. مطلب داچې د خدای ﷻ رحمت د هغه له قهر نه زیات ده، اوس نو دهغه رحمت دا اثر ده چې: که په دنیاکې څوک لږ عمل هم وکړي نو الله تعالیٰ ﷻ د خپل وسیع او زیات رحم له امله ورته یو په لس ثخه نیولې تر یو په اووه سوه پورې بلکې یو په اووه لکه بدله او ثواب ورکوي. ځکه چې رحمت یې ډېر او غضب یې کم ده.

په دنیا کې که یوڅوک بد عمل وکړي، نو بیاددې لائق دی چې باید هم یې په دنیا او هم یې په آخرت کې الله تعالیٰ ﷻ تباه او برباد کړي، خو که همدغه شخص بېرته توبه وباسي نو خدای پاک ﷻ ورته هغه گناه معاف کړي، ځکه چې رحمت او مهرباني یې ډېره ده. که یو چا شپېته اویا هم اتیا کاله په کفر اویا په بد عملي کې تېر کړي وي خو وروسته بیا توبه وباسي نودغه دشپېتوکلونو بدعمل حتی کفر هم ورته معافوي، ځکه چې رحمت یې له عذابه زیات اوغالب ده. که خامخا دغه

انسان توبه ونه ويسته خو يو بل نېک عمل يې وکړ، بيا هم د خداى ﷻ د رحمت اميد شته، ځکه چې خداى پاک ﷻ فرمايي: (اِنَّ الحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَيِئَاتِ) نېک عملونه ګناوې ختموي.

له يوچا څخه صغيره ګناه وشوه ، نو په اودس يې ورته معاف کړي، په لمونځ يې ورته معافوي، د جَمعې لمانځه ته ولاړ په هغې يې ورته معافوي، روژه يې ونيوله، حج يې وکړ، هجرت يې وکړ، صدقه يې ورکړه، په دې ټولو نېکو عملونو ورته ګناهونه معافوي.

يا دا معنا چې: دخداى پاک ﷻ رحمت دهغه له غضب نه زيات ده، چې که يوڅوک ډېر نېک عملونه، ډېرې خوارى وکړي، نو کومې مرتبې ته چې رسېدلى نو دغه بل شخص چې له دغه نېک انسان سره محبت کوي، نو دمحبت دا معنا ده چې ددغه سړي په زړه کې هم دا نيت شته چې دى به نېک عمل کوي، له نېک عمل سره مينه لري، اوس هغه لومړنى شخص په عمل دغه ځاى ته رسېدلى اودغه بل يواځې په نيت خداى ﷻ هغه ځاى ته رسوي.ځکه دخداى پاک ﷻ رحمت ډېر ده له غضبه. هغه شخص په تقوى او ديندارى باندې هغه ځاى ته ځان رسولى خو دغه بل محض په نيت کې ورسره شريک شو، دى هم ددې شوق لري چې کاشکې زه هم خداى ﷻ دغسې عالم کړى واى، يايې مجاهد او ولي کړى واى، حاجي يې

ګرځولی وای، نوبه یواځې په دغه نیت باندې الله تعالیﷻ ورته دهغه بل په اندازه مرتبه ورکړه. ځکه چې: (المرءُ مَعَ من احَبّ) سړی به له هغه چاسره وي چې له چاسره یې مینه محبت وي، هغه کار یې کړی نه وي، خو په زړه کې ددې اراده شته چې زه به یې هم کوم.

نو له نېکو خلکو سره زمونږ مینه اومحبت کولو فائده به مونږته ځکه زیاته وي چې مونږ په خپله په اعمالو کې ډېر کمزوري یو، پخوا به په اعمالو کې یو له بل سره سیالي وه، اوس په دنیا ګټلو کې سیالي ده، مخکنیو به په تقوی او دیانت کې سیالي وه، مونږ اوس په فسق، فجور، ظلم او ګمراهي کې سیالي کوو، اوس نو چې له نېکو خلکو سره مو هم علاقه نه وي او اعمال مو هم دغسې بې خونده وي نو بیا خو خدای مکړه ددې خبرې زیات احتمال ده چې په هلاکت کې به واقع شو، ځکه به مونږ ډېر ددې خبرې کوشش کوو چې له نېکو خلکو او اولیاء الله کرامو سره ښه اخلاص اومحبت پیدا کړو. ولې چې مونږ په خپله ډېر کمزوري یو.

## د یو صحابي دپوښتنې په مهال دحضرت نبي کریمﷺ د ځواب عجیبه انداز

په یوه روایت مبارکه کې راځي چې: یو صحابيؓ حضرت نبي کریمﷺ نه پوښتنه کوي چې: (مَتَی الساعة)؟ قیامت به څه وخت وي؟ حضرت نبي کریمﷺ ورته په ځواب کې وایي چې: د

قيامت د ورځې له پاره دې څه تياري کړې دی ؟ دغه صحابيﷺ له ډېر خجالت څخه وروسته وايي چې: ډېرلمونځونه مې نه دي کړي، ډېرې روژې مې نه دي نيولي، ډېرنيک اعمال مې نه دي کړي، خو زه له الله تعالیﷻ او رسول اللهﷺ سره دزړه له اخلاصه مينه او محبت لرم،حضرت نبي کريمﷺ ورته وايي: (اَنْتَ مَعَ مَنْ اَحْبَبْتَ) ته به له هغه چاسره يوځای کېږې چې له چاسره ستا محبت زيات وي، د الله تعالیﷻ ديدار دقيامت په ورځ داسې حق ده لکه مونږ چې په شنه آسمان کې لمر يا سپوږمۍ وينو، د لمر په ليدلو کې د ټولې دنيا خلک سره شريک دي، يو او بل سره نه پورې وهي چې ته يوې خوا ته شه چې زه لمر ووينم،هېڅ ازدحام نه وي، دغسې به په قيامت کې په کروړونو او اربونو خلک يوځای وي ، په يو ميدان کې به وي، اود الله تعالیﷻ په ليدلو کې به ورته هېڅ تکليف نه پيدا کېږي. خو دغه ديدار به په اندازه دمحبت سره وي، د جنت ترټولو نعمتونو زيات خوند دالله تعالیﷻ په ديدار کې ده. د يو چاچې په دنياکې له الله تعالیﷻ سره څومره مينه وي هغومره به يې هغلته د ديدار برخه زياته وي، څوک به الله تعالیﷻ له سهاره تر ماښامه پورې ليدلی شي، څوک به يې يوه جُمعه کې او څوک به يې په يوه مياشت کې ليدلی شي. همدارنګه ملاقات به له حضرت نبي کريمﷺ سره هم وي، له صحابهٔ کرامو او اولياء الله کرامو سره به هم په همدغه تناسب ليدنه او کتنه وي. په دنيا کې چې

دې خومره مینه او محبت وي نو په آخرت کې به دې هم دغومره نږدېوالی په برخه وي. خو شرط یې دادی چې محبت به دې واقعي وي، یواځې چیغې نارې سورې کفایت نه کوي.

## داچې مونږ دالله تعالیٰ جل جلاله غلامان یو نو مونږ باید څه وکړو؟

یو عالم لیکي چې په دې خبره کې چې: مونږ دالله تعالیٰ ﷻ غلامان یو، نو مونږ په دې کې درواغجن یو، د عبدالله معنا داده چې د خدای ﷻ غلام. نو غلام دغلامي ژوند کوي، غلام د حُر (اصیل) په څېر ژوند نه کوي، غلام د څښتن په مخکې د حیوان حیثیت لري، که هغه یې خرڅوي اوکه یې له خان سره ساتي، که یې آزادوي اوکه خپل خدمت وربانديې کوي نو څوک یې په مالک اعتراض نه شي کولای، خو که یو غلام د څښتن له امر څخه مخالفت او سرغړونه کوي،نو څښتن یې هم سزا ورکوي او نور خلک یې هم ملامتوي چې ولې له خپل څښتن څخه مخالفت کوې ؟ په اوس وخت کې خو غلامان نشته ، نو په مثال کې به اولاد را واخلو.

یو څوک اولاد ولري، نو په هر دین کې په اولاد باندې پلار حق لري، که دغه اولاد دخپل پلار احترام او ادب کوي ، دهغه خبره مني،نو پلار هم ورڅخه راضي وي او خلک هم شاباشی ورکوي چې د فلانکي خو ډېر ښه زوی دی، دخپل پلار ښه په اخلاص خدمت کوي، دخپلې مور یې ډېر خدمت وکړ. اوکه

خدای مه کړه که کوم اولاد له خپل پلار سره مخالفت ته ملا وتړي نو دا پلار مجبوریږي چې دده سره په مقابل کې ودریږي ، خپل زوی به وهي، همدا مور یې ور جګیږي اودا خپل زوی وهي، خلک هم ورته د یو بدبخت انسان په سترګه ګوري چې فلانکی خو انتهایي بداخلاقه ده، له خپل مور او پلار سره یې بې ادبي شروع کړې ده. دمور ، پلار او مشر ورور خبره نه مني. اوس چې مور او پلار په اطاعت درنه راضي کیږي او په مخالفت کولو درڅخه خفه کیږي، دپلار او مور په اطاعت باندې نور خلک درڅخه خوشالیږي، چې دا خو ډېر نېک انسان ده، او که کله په دې خوشالي کې ورڅخه خفه نه شي ، نو بیا همدا نور خلک یې مور او پلار ته راځي چې خیر دی دا دومره وخت یې ښه درسره کړي دي نن ورڅخه سهوه شوې ، پوه شوی نه دی، خیر تاسې ورته عفوه وکړئ، بیا نو هغه پلار چې له خپل اولاد څخه راضي وي، په خپله هم له ځینو تقصیراتو د اولاد څخه تېریږي اود بل په سفارش خو یې بیا یقیني معاف کوي. نو بالکل په همدې شکل باندې که یوڅوک د الله تعالی ﷻ بندګي په اخلاص او مینې محبت سره وکړي نو الله تعالی ﷻ ورڅخه راضي کیږي.

## الله تعالیٰ ﷻ په خپلو بندګانو څومره مهربانه دی؟

د الله تعالیٰ ﷻ مینه او محبت رحمت او مهرباني له غضب څخه مخکې ده، له خپل بنده سره له اویا واري زیاته هغه مینه او محبت لري کوم چې موریې له خپل اولاد سره لري، څوک چې څومره د الله تعالیٰ ﷻ خبره مني دغومره به یې مقام او درجه ورزیاتوي. خو انسان عاجزه ده، که دده نه څه ګناه وشوه نو اول خو یې الله تعالیٰ ﷻ هغو پخوانیو نېکیو ته ګوري نو ګناه ورته معافوي اوکه بالفرض الله تعالیٰ ﷻ یې ورته معاف نه کړي، توبه یې ونه اېسته اودی جهنم ته ولاړ او له عذابونو سره مخامخ شو، نو بیا د الله تعالیٰ ﷻ د دوستانو سفارش ده ته فائده رسوي ، پیغمبرﷺ ، ملائکې ، علماء کرام اویا هم شهیدان به یې سفارش کوي، قرآن عظیم الشان به یې شفاعت کوي، الله تعالیٰ ﷻ ته به زاری کوي چې ستا دغه بنده د نورو اعمالو په اعتبار سره ډېر ښه وو دغه یوه ګناه ورڅخه شوې دغه ګناه خو ته ورته معاف کړه،نو الله تعالیٰ ﷻ بیا دهغه سفارش هم قبلوي ، اوس نو چې مونږ څومره د اطاعت کوشش کوو نودا د محبت علامه ده.

نو اصل خبرې ته خو ، مونږ د غُلامي خبره کوله، نو هغه عالم وایي چې: مونږ په دې خبره کې دروغجن یو چې مونږدا وایو

چې مونږ د الله تعالی ﷻ غلامان يو، ځکه چې داسې کارونه
کوو لکه حُر (اصيل) خلک يې چې کوي، د خپلې خوښې کار
کوو، ښښتن چې څه راته وايي هغه نه کوو.

## خلک په دوه قسمه دي

خلک په عمومي توګه په دوه قِسمه دي، يو قِسم هغه خلک
دي چې ټوله مينه او محبت يې له خپل نفس سره ده . او يو قِسم
هغه خلک دي چې دهغوی محبت ټول له الله تعالی ﷻ سره ده.

په چا چې خپل نفس غالبه او په کوم شي يې نفس راضي
کېږي نو دهغه دخواهش د پوره کولو له پاره کوشش کوي،
ځکه دده له خپل نفس سره مينه وي، نو چې نفس يې څه
غواړي دی هم کوشش کوي چې هغه شی ورته ورسوي. که دغه
انسان له يوچا سره محبت کوي هغه هم دخپل نفس په تقاضا
کوي، که له دنيا، قدرت، عزت او مشهورتيا سره مينه لري
هغه هم د نفس د تقاضاوو له امله وي. چاته چې خپل نفس
محبوب او معشوقه شو نو بيا هغه دخپل نفس رضا غواړي.

له انسان څخه نفس يواځې په دې خوشالېږي چې هغه دې په
خپل ژوند کې د الله تعالی ﷻ اوامرو ته غاړه کې نه ږدي او د
نفس دغه تقاضا هغه وخت پوره کېږي چې يو څوک له دنيا،
قدرت او له نامه سره مينه ولري، حتی له يو خپلوان سره

دوستي کول هم د نفس په تقاضا وي چې دا خو مې خپلوان او
تربور ده، باید چې ورسره محبت وشي. یا له یوچاسره محبت د
طمعې اوتوقع په خاطر کوي، امید ورته لري چې که له دې
سړي سره آشنايي وکړم دا فائده به راته ورسیږي، نوداهم د
نفس تقاضا ده. اوکه له یوه هلک یا ښځې سره محبت کوي
هغه هم د نفس په تقاضا کوي، ځکه له هلکانو او ښځو سره په
مینه کولو باندې دنفس خواهش سره پوره کېږي.

نود چاچې له خپل نفس سره ډېره مینه او علاقه وي هغه تل
دا کوشش کوي چې نفس څنګه راضي وساتي، نو نفس چې
کوم شی ورته ښائسته کوي دی کوشش کوي چې هغه پوره
کړي.

دوهم قِسم بیا ځینې داسې انسانان دي چې دهغوی ډېره
مینه او محبت له الله تعالیٰ ﷻ سره وي،نو که دغه انسان له
چاسره مینه او محبت کوي هغه د دین په خاطر کوي چې الله
تعالیٰ ﷻ پرې راضي کېږي، که له علم او قدرت سره مینه کوي
هم د دین له پاره یې کوي، له دې شیانو سره یې په محبت کې
مقصد د دین خدمت کول وي.

نو اصلِ خبره داده چې په دنیا کې دوه قِسمه معشوقې شوې:
یا به الله تعالیٰ وي، اویا به نفس وي. د نفس د خواهشاتو په
پوره کولو سره شیطان له سړي څخه راضي کېږي،نوشیطان یې

هم ملګرى شي، هغه كوشش كوي چې داسې اسباب ورته پيدا كړي چې نفس يې ورباندې خوشحاله وي.

اوچې د چا محبت له الله تعالىﷻ سره وي، نودده ملګري ملائكې، انبياء عليهم السلام او نېک خلک وي، دهغوى سره محبت كوي، ځكه چې د الله تعالىﷻ مينه اومحبت په دې كار كې ده.

د پيغمبرﷺ سره محبت داهم دخداى پاکﷻ د محبت اثر ده، چې دچا له الله تعالىﷻ سره مينه وي، نودهغه بيا د الله تعالىﷻ له رسول سره هم مينه پيدا كېږي، دخداى پاکﷻ له دوستانو سره محبت هم د الله تعالىﷻ د محبت يوه نښانه ده،ځكه د چاچې له الله تعالىﷻ سره مينه وي دهغه له دوست سره يې هم مينه پيدا كېږي.

اصل مقصود د خداى پاکﷻ رضا شي. لكه په جانب مقابل كې چې اصل مقصود نفس رضا شي نونفس چې په كوم شي راضي كېږي دى كوشش كوي چې هغه كار وكړي. نودچا مينه چې له الله تعالىﷻ سره پيدا شوه نو چې په كوم شي هغهﷻ راضي كېږي دى دهغه عمل د كولو كوشش كوي، خو د الله تعالىﷻ رضا بيا د حضرت نبي كريمﷺ په متابعت كې نغښتي ده، ځكه رب تعالىﷻ حضرت نبي كريمﷺ ته فرمايي: (قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِىْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ) هغه خلک چې دا خبره كوي چې زمونږ له الله تعالى سره مينه ده ته دوى ته

ووایه چې که تاسې رښتیاهم له الله تعالی سره محبت لرئ نو زما متابعت وکړئ، له هغې وروسته به بیا الله تعالی هم له تاسې سره محبت وکړي. ځکه د الله تعالی سره تعلق هغه د پیغمبر په واسطه جوړیږي، نو چې یو څوک د پیغمبر اطاعت وکړي بیا به د الله تعالی سره دده تعلق جوړیږي. ځکه الله تعالی ﷻ مونږ ته حکم کوي چې: ﴿اطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرسولَ﴾ د الله تعالی اودهغه د پیغمبر اطاعت کوئ. ځکه خدای تعالی ﷻ وایي چې زما پیغمبر یواځې ددې له پاره در استولی ده چې: ﴿لِيُطَاعَ﴾ چې خلک یې اطاعت وکړي، اوس نو د پیغمبر اطاعت د الله تعالی ﷻ په حکم شو،چې په واقع کې بېرته متابعت او اطاعت د الله تعالی ﷻ شو.

## د چاچې له خدای پاک ﷻ سره مینه وي د هغه علامې

علماء کرام لیکي چې: که څوک غواړي چې یو سړی وپېژني چې رښتیا هم دده له الله تعالی ﷻ سره مینه ده اویاهم خپل ځان معلوموي چې آیا زما له الله تعالی ﷻ سره مینه شته کنه نو ددې له پاره څه علامه ده ؟

علامه یې داده چې: ددې انسان له قرآن کریم سره محبت پیدا شي، ځکه چې د الله تعالی ﷻ سره خبرې د الله تعالی احکام چې الله تعالی ﷻ په دې شیانو راضي کېږي اوپه دې شیانو ناراضه کېږي دا په قرآن کریم کې پېژندل کېږي، سړي ته د

خپل محبوب خبرې خوند ورکوي، د خپل محبوب د امر په خای کول ورته خوند ورکوي، په کوم شي چې یې محبوب خفه کېږي له هغه شي نه دی خان ساتي، نو د الله تعالی ﷻ خفگان او رضا ټول په قرآن کریم کې معلومېږي.

نو علامه د محبت داده چې له قرآن کریم سره یې مینه او محبت وي، نو دی به بیا کوشش کوي چې په قرآن کریم کې له ما څخه الله تعالی ﷻ څه غوښتي دي زه به په هغو عمل کوم ځکه چې هغه ﷻ پرې راضي کېږي او چې له کوم شي څخه یې منع کړی یم ځان به ورڅخه ساتم، ځکه چې دی پرې خفه کېږي. هغه ﷻ مې معشوقه ده بیا راڅخه خفه کېږي، په دنیا کې چې د چا له بل چا سره څومره مینه وي هغومره یې خبرې ته غوږ نیسي.

نو چې څومره له الله تعالی ﷻ سره مینه زیاتیږي دغومره به دهغه خبرې ته غاړه ږدي.

## دهغه سړي علامه چې دده له قرآن کریم سره مینه وي

او له قرآن سره محبت کول له کوم شي معلومېږي، چې ددې سړي واقعاً هم له قرآن کریم سره مینه ده ؟

نودا د رسول کریمﷺ په محبت سره معلومیږي، قرآن کریم مونږ ته د حضرت نبي کریمﷺ په واسطه رارسېدلی اوهغه راته بیان کړی دی . اوس نود قرآن کریم سره به زمونږ مینه هلته پیدا کېږي چې دهغه چا سره مینه پیدا شي چې مونږ ته دقرآن کریم خبر راکړی وي، دهغه احکام یې راته بیان کړي وي.

## دهغه چا علامه چې له حضرت رسول اللهﷺ سره رښتیا مینه لري

او له رسول کریمﷺ سره مینه بیا په څه معلومیږي؟ نودا بیا د سنتو سره په محبت باندې معلومیږي .

مونږ مخکې ذکر کړل چې: د چا له چا سره مینه وي نوداسې عمل به وربانديې کوي چې هغه معشوقه یې پرې راضي کېږي، اوس دپیغمبرﷺ سره محبت هلته ثابتېدای شي چې هغه عمل وکړل شي په کوم چې پیغمبرﷺ راضي کېږي اوپه کوم شي چې خدای مه کړه هغه خفه کېږي له هغه نه ځان وساتي. د پیغمبرﷺ قول، عمل اودهغه په مخکې چې چا کوم عمل کړی وي (چې تقریر ورته ویل کېږي) دا ټولو ته د پیغمبرﷺ سنت ویل کېږي.

## حضرت مجدد الف ثانی قدس سره نصیحت

اوس نو چې څوک د پیغمبرﷺ سره د مینې او محبت دعوه لري هغه به هغه وخت رښتیونی وي چې واقعاً د پیغمبرﷺ له سنتو سره یې مینه وي ، له دې وجې ( حضرت امام مجدد الف ثاني قدسَ اللهُ سِرهٗ ) خپل نوم سید احمد سرهندي فاروقي او په مجدد الف ثاني سره مشهور ده، او زیارت مبارک یې په ( سرهند شریف ) کې ده، د طریقت او تصوف په لاره کې د ( نقشبندیه ) طریقې یو عظیم مقتدا او لاربنود ده. نو هغه مبارک فرمایي چې: انسان هغه وخت د کمال درجې ته رسیږي چې دی د سنتو متابعت کوي، حتی که یو وړوکی سنت پر ځای کوي او یو لوی بدعت حسنه چې حضرت نبي کریمﷺ نه وي کړي نو له دې بدعت حسنه څخه هغه د وړوکي سُنت ثوابونه زیات دي، ځکه چې هغه د حضرت نبي کریمﷺ عمل ده او له هغه څخه ثابت ده.

مثال یې داسې ورکړی چې: یو سړی بیت الخلاء ته ننوځي ، نو په دې ځای کې سنت عمل داده چې چپه پښه به مخکې ننه باسي او ( اَعوذُ بِاللهِ مِنَ الخُبُثِ وَالخَبَائِث ) دعا به ووایي، که دا یې زده نه وي نو اعوذ بالله من الشیطن الرجیم دې ووایي. بیا چې له هغه طرف نه بېرته راوځي نو ښۍ پښه به راوباسي او

بيابه دغه دعاووايي چې: (الحمدُ لِله الذی اَذهَبَ عَنّی الاذی و عفانی).

نو اوس يو طرف ته دغه سنت عمل خلکو ته يو ډېر وړوکی کار ښکاري. او بل طرف ته دمدرسې جوړول چې د پيغمبرﷺ په وخت کې داسې مدرسې نه وې،نودغو د مدرسو جوړولو ته بِدعتِ حسنه وايي. (بِدعت حسنه معنا نوی کار خو چې ښک وي). نو اوس ددغې مدرسې له جوړولو څخه دغه د بيت الخلاء په سنتو باندې عمل کول ډېر ثواب لري.

تاسې اوس فکر وکړئ چې يو طرف ته څومره غټ کار ده چې هغه د مدرسې جوړول دي او بل طرف ته څومره وړوکی عمل ده چې بيت الخلاء ته چپه پښه مخکې ننه اېستل دي چې يوسنت عمل ده، دا چپه پښه ننه اېستل د سنتو په نيت باندې خدای پاکﷻ ته دمدرسې تر جوړولو هم محبوب او عزتمن دي.

اوس دې سړی فکر وکړي چې: له الله تعالیﷻ سره محبت ترهغه وخته نه پيداکېږي تر څو چې دسړي له قرآن کريم سره اوله حضرت نبي کريمﷺ سره مينه پيدا شوي نه وي اوله رسول اللهﷺ سره مينه بيا تر هغه وخته پورې نه شي راتلای ترڅو چې دهغهﷺ له سنتوسره زمونږ مينه نه وي پيداشوي. نو له خپل ځان سره وګورئ چې مونږ څومره دحضرت نبي کريمﷺ له سنتوسره مينه او محبت لرو ؟ نو بيا به مونږ ته معلومه شي

چې: رښتیا زمونږ له دین سره څومره مینه ده؟ له الله تعالیٰ ﷻ او حضرت نبي کریم ﷺ سره مو څومره مینه ده؟

دحضرت نبي کریم ﷺ د سنتو په پابندي خدای پاک ﷻ راضي کېږي، ځکه چې خدای پاک ﷻ فرمایي: چې که څوک زما محبت غواړي نو زما دپیغمبر ﷺ اطاعت دې کوي، له هغې نه وروسته به بیا زه ورسره محبت کوم.

## داسې خلک مې هم ولیدل چې په درواغویې د حضرت نبي کریم ﷺ سره د محبت دعوه درلوده

یو وخت مونږ کوم ملګري جلسې ته بیوولي وو، هغو خلکو ددې دعوه درلوده چې: مونږ له الله تعالیٰ ﷻ او له حضرت نبي کریم ﷺ سره ډېره مینه لرو، په هغه مجلس کې چې د نورو جوماتونو خلک هم راغلي وو په ټول مجلس کې پنځه داسې کسان هم نه وو چې ږیرې به یې درلودې، نو ما په هغه تقریر کې ورته وویل چې: تاسې دحضرت نبي کریم ﷺ سره د عشق دعوه لرئ، دا څرنګه محبت ده چې دحضرت نبي کریم ﷺ د سنتو فکر له یو سپین ږیري سره هم نشته، او دعوه ددې لرئ چې مونږ دحضرت نبي کریم ﷺ سره محبت لرو، پوښتنه مې وکړه چې: په ټوله علاقه کې مدرسه نه وه، په ټوله علاقه کې دخپل قوم یو عالم یې نه و، په ټوله علاقه کې یو طالب نه و، ماته یې چې هغه خلک معرفي کول د یوې کورنۍ به پنځه کسان وو،

چې دا ډایرېکټر صاحب ده، داماسټر صاحب ده، دا کلرک صاحب ده، دا فلانکی صیب ده، ټول صاحبان وو، دیوه کور څلور پنځه کسان ټول به د دنیا خلک وو، اویو هم پکې عالم او یاطالب نه وو، نو له دین نه به په څه شي خبرتیا راشي ؟ دا انسان به په دې څه پوه شي چې زه د الله تعالی ﷻ په لاره روان یم اوکه د شیطان ؟ له ماڅخه په دې عمل الله تعالی ﷻ خوشحالیږي اوکه شیطان ؟

دچا چې له چاسره مینه وي نور خو څه کوې دا ظاهري لباس دا خوند ورکوي چې دهغه په شان یې جوړ کړي، هغه نورعمل خو به خامخا کوي، دهغه اعمال او اخلاق خوبه په ځان کې خامخا پیداکوي، دوه ښه ملګري چې په خپل منځ کې یې رښتیا مینه اومحبت وي دهغو جامې په یو رنګ وي.

## حضرت ام المؤمنین رضی الله عنها صحابهٔ کراموﷺ ته د حضرت نبي کریمﷺ دژوند حالات بیانوي

حضرت نبي کریمﷺ چې له دنیا څخه انتقال وکړ حضرت ام المؤمنین عائشې صدیقې رضی الله عنها ته به چې صحابهٔ کرامﷺ او تابعین حضرات ورتلل اود نبي کریمﷺ دحالاتو او ژوند پوښتنه به یې ترې کوله چې حضرت نبي کریمﷺ په کومو جامو کې له دنیا څخه رحلت وکړ ؟ نو حضرت عائشې رضی

الله عنها صحابهٔ کرامو ﷺ اوتابعینو حضراتو ته هغه جامې راورسیتې یوه شړی وه.

په حدیث شریف کې راځي ( مُلبد ) یعني لېمڅی . د حضرت نبي کریمﷺ دغه مبارک څادر یا شړی له ډېرو پیوندونو ورکولو څخه داسې شوې وه چې یو پیوند به په بل باندې برسېره وو.

اوهغه لنګ مبارک چې دحضرت نبي کریمﷺ روح مبارک پکې قبض شوی وو، هغه دومره ډبله جامه وه چې ځینې وایي چې هغه ته هم پیوندونه ورکړل شوې وو، څوک وایي چې دا یوه خیره جامه وه اوله دې نه یې لنګ مبارک جوړ کړی وو، دا د حضرت نبي کریمﷺ دهغه وخت لباس دی چې دی له دې فاني دنیا څخه رحلت کوي، سره له دې چې پیغمبر هم ده، په دنیا کې یې هم څومره طاقت او قدرت درلوده، د ټولو عربو امیر و، داسې نه وو چې دی د مسکنت او پا هم نیستي په وخت کې وفات شوی وي، د وخت لوی حاکم، امیر او پیغمبر هم و، خو دی په هغو جامو کې له دنیا څخه رحلت کوي چې له ډېرو پیوندونو څخه لېمڅی ورڅخه جوړ شوی دی.

حضرت عمرﷺ یو وخت د حضرت نبي کریمﷺ کور ته ننوت، حضرت نبي کریمﷺ په پوزي باندې ډډه وهلې ده، بالښت د خرمني له پوستکي څخه جوړ شوی دی، په بالښت کې دننه د خرما پاڼې اچول شوي وې ، په کوم پوزي باندې چې حضرت

نبي کریمﷺ تکیه کړې وه نودده مبارک دبدن په څنګ کې دهغه پوزي لټ په لټ نښې وې. کله چې حضرت عمرؓ وکتل چې د حضرت نبي کریمﷺ په مبارکه کوټه کې له دوه درې پوستکو څخه پرته نور څه نشته، نو حضرت عمرؓ په ژړا شو، او ورته يې وويل چې: یارسول اللهﷺ! تاسې الله تعالیٰﷻ ته سوال وکړئ چې په مسلمانانو آسانتیا او آزادي راولي، قیصر، کسرا او نور مشرکین سره له دې چې کفار دي خو بیاهم څومره په آسایش او آرایش کې ژوند تېروي، تاسې د خدای پاکﷻ پیغمبر یاست خو ستاسې په کوټه کې د کېناستلو له پاره لاندې فرش نشته اوته هم په پوزي پروت يې، هغه هم ستاسې په وجود کې نښې جوړې کړي.

حضرت ام المؤمنین رضی الله عنها فرمايي چې: زمونږ په کور کې يو پوستکی و چې د ورځې به مو اوبن ته پرې وابنه اچول اود شپې به په هغه باندې ویده کېدو.

همدارنګه دا مبارکه فرمايي چې: زمونږ په کور کې دوه میاشتې هم داسې تېرې شوي دي چې په نغري کې اور نه دی بل شوی، په اوبو او خرماوو به مو وخت تېراوه، یابه هم د همسایه له کوره چا شیدې راوړې اوهغه به مو وڅښلې، نور مو په کور کې څه شی نه دي پاخه کړي. او وجهه يې دا وه چې حضرت نبي کریمﷺ به په کور څه شی نه جمع کول، هرڅه يې آخرت ته ساتل. نو اوس چې د چا له چا سره مینه وي نو دغه مثال ته دې وګوري.

## حضرت عمر رضی الله عنه څومره د حضرت نبي كريم ﷺ پوره تابع و؟

دحضرت عمر رضی الله عنه دخلافت په زمانه کې چې دی د ټولو مسلمانانو خلیفه و ، اودده په وخت کې مسلمانانو ډېر زیات فتوحات کړي او ډېر ملکونه په اسلام مشرف شوي ، نو اوس څرنګه چې دحضرت عمر رضی الله عنه په رښتیا هم له حضرت نبي کریم ﷺ سره مینه وه، نو څرنګه جامه ، خوراک څښاک چې د حضرت نبي کریم ﷺ و حضرت عمر رضی الله عنه هم هماغه عادت ګرځولي وو. نو مونږ وویل چې د چا له چا سره مینه وي هغه ددې هم کوشش کوي چې حتی خپله ظاهري جامه له هغه سره یو رنګه کړي.

دحضرت عمر رضی الله عنه د کمیس د اوږو په منځ کې درې پیوندونه ( پینې ) لګېدلې وې، او کوم لنګ چې ده مبارک له ځانه راتاو کړی و هغه ته دولس ځایه پیوند لګېدلی و. نن سبا تر ټولو غریب سړی هم داسې جامې نه اغوندي چې هغې ته پیوند لګېدلی وي. او حضرت عمر رضی الله عنه چې دخپل وخت د ټولو مسلمانانو امیرالمؤمنین ده، خو له خپل محبوب سره د مینې اومحبت له امله یې خپله جامه هم هماغسې ساتله.

حضرت علي﷛ وايي :د ډېرې لوږې له امله د حضرت نبي کريمﷺ کور ته ورغلم، خو هلته هم د خوراک څه نه و، جامه مې هم نه درلوده، نو دحضرت نبي کريمﷺ په کور کې يو پوستکی راخوړند و، هغه پوستکی مې په منځ کې غبرګ کړ او وامې غوسته، هغه داسې جامه وه چې لنګ او قميص دواړوته يې پيوندونه لګيدلي وو.

حضرت عمر﷛ دخپل خلافت په زمانه کې شام ته ولاړ، ترڅو دخپلو ټاکل شويو اميرانو په هکله له خلکو څخه پوښتنې وکړي، کوم امير چې ده مقرر کړی و، هغه دده د استقبال له پاره (حمص) ته مخته راغی، هغه چې کله دحضرت عمر﷛ جامې وليدلې نويو جوړ تازه اونوې پستې جامې يې ورته راوړې چې يا امير المؤمنين ددې مملکت خلک تاته راځي له تاسره ملاقات کوي، ته يې تراوسه نه يې ليدلی، تاسې دغه جامې واغوندئ ، حضرت عمر﷛ ورته وايي: ماته خپله جامه محبوبه ده، ځکه چې د حضرت نبي کريمﷺ هم دغسې جامې وې، بيا هغه امير ورته وايي چې ښه بدله يې کړئ ترڅو درته يې ومينځو، دا خبره يې ورسره ومنله ،اوهغه بله جامه يې ترهغه وخته له ځانه څخه راتاو کړه ترڅو چې دده هغه زړې جامې ومينځل شوې او وچې شوې، هغه امير غوښتل چې دغه نوې جوړه همداسې واغوندي ، ځکه چې ددې مملکت خلک ورته راځي اوله ده سره به ويني، خو حضرت عمر﷛ وايي چې: زما خپله جامه راواخلئ ، هغه خَولې ډېرې ښې وچوي. نو د چا

چې له چا سره مینه وي د هغه قول اودهغه فعل هم ده ته خوند ورکوي، دهغه جامه هم ورته خوند ورکوي.

د الله تعالیٰ ﷻ د محبت علامه داده چې د سړي به له قرآن عظیم الشان سره مینه وي، له قرآن عظیم الشان سره د محبت علامه داده چې له حضرت رسول الله ﷺ سره به یې محبت وي، له حضرت رسول الله ﷺ سره دمحبت علامه داده چې: دده ﷺ له سنتو سره به یې مینه او محبت وي، هغه سنت به په ځان عملي کوي.

انسان په خپل وس مکلف ده، مونږ به خپل کوشش کوو، دا خو مو له وسه پوره ده چې خپله جامه، ظاهري صورت په سنتو برابر کړو، په دې کې مونږ ته څه مشکل ده؟ مونږ ته به څه مشکل وي چې د حضرت نبي کریم ﷺ په سنت طر... په جمعه لمونځ وکړو؟

له دین سره هر موافق عمل دا د سنتو زندګي ده اوپه سنتو ادا کولو سره انسان ته ترقي پیدا کېږي.

## په یوسُنت د عمل کولو له امله دفیوضاتو دروازه خلاصه شوه

حضرت مجدد صاحب قدس سره فرمایي چې: یو وخت زما پام نه و د سنتوخلاف په چپ اړخ څملاستم،په ما باندې چې

کوم انوار اوفیوضات د الله تعالیٰ ﷻ له لوري راورېدل هغه رابانديې بند شول، نو زه پوه شوم چې ما د سنتو خلاف عمل کړی دی، په څنګ هم وانه وښتم، بلکې له سره په نبي ارخ څملاستم، له دې سره سم داسې انوار او فیوضات راجاري شول چې مخکې مې هم نه وو لیدلي.

اولیاء الله وو اونېکو خلکوته چې څومره ترقي په لاس ورغلې هغه د سنتو د پابندي نه امله ده. علماء کرام هرځای مونږ ته په تقریرونو، وعظونو او نصېحتونو کې په شرېعت باندې د عمل کولو دعوت راکوي چې په شرېعت باندې عمل وکړئ، داچې مونږ تر څلوېښت او پنځوس کلنۍ پورې په شرېعت ځان نه شو برابرولای، نو له دې نه معلومېږي چې زمونږ له الله تعالیٰ ﷻ او حضرت نبي کریم ﷺ سره محبت نشته، لکه اوس چې مو زړه راته څه وايي هغه په ځای کوو، بیابه چې الله تعالیٰ ﷻ او حضرت رسول الله ﷺ څه ویل هغه به مو هم په ځای کول، ائمۀ کرامو او اولیاء الله وو که څه ویل هغه به مو په ځای کول.

دنیاوي معشوقه که څه راڅخه وغواړي نو فی الحال هغه ځای ته ځان رسوو اوهغه شی ورته راوړو. نو دې ته هم توجه په کار ده چې دا علماء کرام چې بار بار مونږ ته بیانونه کوي آخر ددې خو به هم څه مطلب وي. یو څه ګټه خو به یې وي. بالفرض مثلاً په دغه مجلس کې هغو خلکو د حضرت رسول الله ﷺ د سنتو موافق د ژوند تېرولو اراده وکړه، چې مونږ به ځان په سنتو او شرېعت باندې برابروو، نوتاسې ووایاست چې دغه

کار مُلا ته د دنیا څه ګټه ورکړه ؟ هوکې ! دا ګټه یې شته چې که چېرې دغه عالم دا خبره دخدای تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره کړې وي اودغه سړي هم دخدای تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره پرې عمل وکړ نو دی چې څومره نېک اعمال کوي نو دغه عالم ددې عمل په ثواب کې ورسره شرېک ده، دغه د آخرت ګټه یې ده.

نو الله تعالیٰ ﷻ دې زمونږ او ستاسې په زړونو کې د خدای پاک ﷻ او جناب محمدرسول الله ﷺ اودهغه د مبارک دین محبت واچوي، چې ددې سوچ او فکر راسره پیدا شي چې الله تعالیٰ ﷻ او رسول الله ﷺ په کوم عمل راڅخه خوشالیږي. او بیاهماغه عمل په پوره کوشش سره سرته ورسوو او امید مو دې وي چې الله تعالیٰ ﷻ او رسول الله ﷺ به راڅخه راضي وي.

زه د ډېرې خبره ډېره کوم، او الحمدلله ډېرو خلکو پرېښې هم دي، خو په ډېرو خلکو دا خبره ښه لګیږي، څکه چې وایي په دې کې زما ګټه ده، دحضرت رسول الله ﷺ سنت عمل ده، اوډېر داسې ځوانان دي چې په بازار کې له سړي څخه خان څنګ ته کوي اوبه بل طرف ځي، حال دا چې خان مُحب بولي چې له دې عالم سره مې محبت ده، ظاهره بې ادبي نه کوي،لکن دا ورته مشکله ښکاري چې ږیره پرېږدي، خودا ورته آسانه ده چې لاړه چېه کړي، له هغه عالم سره په کېناستلو خو به یې د آخرت یو څه ګټه شوې وه، خو له هغه نه خان پټوي، ولې چې شرم ده،

ځکه نفس یې خرابیږي، که ډیره پرېږدو نو نفس خفه کېږي، نو نفس نه شي خفه کولای.

## یو طالب د وېښتانو د نه کمولو له وجې د کال په منځ کې درس پرېښود

زه د منبع العلوم په مدرسه کې مُدرِس وم، نو یوه طالب وېښتان په یوه طرف اړولي وو، او ډېر غټ پټکی یې پرېښی و، نو ما په مجلس کې بار بار دا خبره کوله چې سړی باید ځان په سنتو برابر کړي، یو وخت د کال په منځ کې دغه طالب بستره واخیسته، ملګرو ورته وویل چې اوس خو د کال منځ ده ، په بله مدرسه کې به هم کتابونه درځخه ویل شوي وي او ته کډه اخلې؟ دی ورته وایي چې زه له دې وېښتانو نه تېرېږم، دا پیکی نه شم ختمولای، او استاد په سبق کې ماته خطاب نه کوي. یعنې خطاب بلې خوا ته کوي زه یې بد اېسم.

اوس نفس خبیث ده ، سړی نه پرېږدي، که یو څوک په دې باره کې لږ فکر وکړي چې مولوي صاحب یا خلیفه صاحب سره له دې وجهې نه مخامخ کېږي چې ږیره یې خریېلې او یا یې لنډه کړې او شرمیږي، نو له حضرت نبي کریمﷺ ځخه ولې نه شرمیږي ؟ دا د مُلا سنت دي او که دحضرت نبي کریمﷺ ؟ دا شریعت د مُلا ده که د الله تعالیﷻ اودغه د رسول ﷺ؟ له مولویصاحب، خلیفه صاحب او حاجي صاحب نه شرمېږي اود

چاچې سُنت او شریعت ده او د چاچې دین ده له هغه څخه بیا نه شرمیږي، سره له دې چې دقیامت په ورځ مو د امید ځای هم هغه ده، چې هغهﷺ به مو شفاعت کوي، او حضرت نبي کریمﷺ رابي چې څوک زما د سنتو متابعت نه کوي زه به یې هېڅکله شفاعت ونه کړم، نو باید دحضرت نبي کریمﷺ د سنتو پوره تابعداري وکړو.

نو یو څوک که له چا سره په جامه او لباس کې ځان برابروي او عمل یې دهغو خلکو په شان نه وي نو حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: (کَلاَبِسِ ثَوبِي زُوْرٍ) لکه د دروا غو جامې یې چې اغوستې وي، یعنې داچې له سر نه تر پښو پورې ټول په دروا غو کې پټ ده، چې عمل دې د عالم نه ده، نو ځان د عالم په شکل مه جوړوه، چې عمل دې دخدای د دوست او یو ولي په شان نه ده، نو ځان هغسې مه جوړوه.

که یو طرف ته وګورو داسې د امید خبرې دي چې نفس په محبت سره د سرې کار جوړیږي، خو بل طرف ته بیا داسې ده که عمل دې هغسې نه وي نو بیا دهغو په شان جامه مه جوړوه، دا په هغو پورې استهزاء او پسخند ده. ښه نو چې څوک ږیره ، سر او جامه نه برابروي هم تاوان ده، ځکه چې دا د اصیل کار شو، د غلامۍ کار مو ونه کړ، او چې څوک بیا ږیره پرېږدي ، پټکی په سر کوي، د صوفیانو لباس اغوندي خو بیا په ناروا رو لګیا وي.

گوري: دا ږيره د انسان له پاره يو د نصيحت لاره ده. مثلاً که يو بې ږيري يو غټ ناروا کار کوي، نو خلک څه ورته نه وايي، خو که د ږيرې خښتن يو معمولي بد کار وکړي نو خلک في الحال شور جوړوي چې ږيره دې هم پرې ايښې ده اودا غلط کار کوي.

نو معلوميږي چې په دې ږيره کې عزت او سرېتوب دی، دچاچې ږيره نشته څوک ورپسې څه نه وايي،دا معنا چې هغه خو بالکل ختم ده، او ستا خوږيره هم شته نو ته ولې داسې ناروا کوې ؟ اُمي که يو کار کوي خلک څه بد ورباندې نه وايي، خو که يو مُلا د شريعت خلاف يو معمولي کار وکړ نو في الحال يې خلک ملامتوي چې ته خو ملا هم يې داکار کوې . نوداسې ونه شي چې خدای نخواسته ږيرې هم پرېږدو ، پټکی هم په سر کړو، د نېکو خلکو او علماوو جامه هم واغوندو او بيا په غلطو کارونو کې لګيا يو. نو بندګان به مو هم بد يادوي چې ولې داسې کار کوي، او خدای پاک ﷻ به هم بياراته وايي چې ولې دې داسې کاوه ؟

## د حضرت شرُيح په يوه تنبيه مجرم مړ شو

امام شريح چې دحضرت علي رضی الله عنه دخلافت په زمانه کې يو مشهور قاضي و، نو يو چا څه ګناه کړې وه، بل څوک راغی او

شاهدي يې ورکړه چې دا ګناه يې کړې ده، ده حُکم ورکړ چې پنخوس دورې يې ووهئ، دا سړي يې پنځوس دورې وواهه. په دې پسې چا يو بل ګنهکار هم راوست چې هغه هم دغسې ګناه کړې وه، امام شريح رحمه الله ورته مخ وروګرځاوه چې تا به ولې داسې کار کاوه ؟ نه يې وواهه اونه يې نور څه ورته وويل ، يواځې همدومره يې ورته وويل ، کله چې هغه دوهم مجرم ووت نو په مجلس کې ناستو خلکو اعتراض وکړ چې په دغو دواړو مجرمانو کې مو ډېر فرق وکړ، حالانکه ګناه يې هم يوه وه، اولنی دې پنځوس دورې وواهه اودغه بل هم چې همداسې ګناه يې کړې وه هغه ته دې يواځې همدومره وويل چې تابه ولې داسې کار کاوه ؟

امام شريح ورته وويل چې: په دې دواړو کسانو کې ډېر فرق ده، په اول شخص به خبر شې چې يو څو ورځې وروسته به بيا په ګناه لګيا وي، او پاتې شو دا دوهم شخص دی به يواځې زما د همدې خبرې د غم له امله مړ شي ؟ رښتيا هم هماغسې پېښه وشوه، هغه لومړنی بيا په ګناه کولو شروع وکړه اودغه دوهم چې کور ته ولاړ دا سوچ ورته ولوېده چې رښتيا هم خلک ماته څومره د قدر په سترګه ګوري ، خدای پاک ﷻ څومره رحم راباندې کړی دی، عالم هم يم، نو ما به ولې د الله تعالی ﷻ د امر مخالفت کاوه ؟ دا غم دومره ورباندې دروند شو چې خوراک څښاک يې پرېښود اودڅه وخت له تېرېدووروسته له ډېره غمه مړ شو. (حسنات الابرار سيئات المقربين)

د انبیارو علیهم الصلاة والسلام حالات چې وکتل شي ، له هغوی څخه زمونږ په عقیده صغیره ګناه هم نه ده صادره شوې، حتی په خطایي انداز سره هم. لکه سړی چې په لار روان وي او پښه یې وښوییږي او ولوېږي ، نو په ډېرو معمولي معمولي مسائلو کې هغوی دومره ژړلي دي چې که مونږ قتل هم وکړو نو دومره به ونه ژاړو.

د دنیا د ټولو خلکو ژړا که رایوځای کړو نو د آدمعليه السلام له ژړا سره نه شي برابرېدلای، سره له دې چې اجتهادي خطا ورڅخه شوې وه. ابلیس علیه اللعنة په ناحقه ورته قسم وکړ چې ته یې د غنم له دانې خوړلو څخه نه یې منعه کړی،زه نصیحت درته کوم، ستا خیرخواه یم، که دا د غنم دانه دې وخوړه نو همیش به دې جنت ځای وي اوبیا به ورڅخه ونه ایستل شې ، خو آدمعليه السلام بیاهم ونه منله، حضرت حواء رضي الله عنها ته دغه بدبخت شیطان راغی اوپه خبرو خبرو یې تېرا یستله اودهغې خبره آدمعليه السلام هم ومنله ، نو له دې نه وروسته آدمعليه السلام ته دا فکر هم ورغی چې زه یې دغنم له هغه بوټي نه منع کړی یم نوکه دا بل وخورم څه حرج به نه وي، نو په خطایي سره یې یوه دانه وخوړه،نو الله تعالیٰﷻ ورته في الحال وویل چې: تاسې ته ما نه وو ویلي چې دجنت له نعمتونو څخه مو چې هرڅه خوښه وي ویې خورئ، خو دغې دانې ته به نه ورنږدې کېږئ، له دې سره د جنت هغه د عزت جامې ورڅخه لرې کړل شوې، ځمکې ته

راکوز کړل شول، او د هغې یوې سهوِ له امله یې تر سلو کلونو پورې د آسمان طرف ته ونه کتل.

دا چې مونږ ډیره پرېښوده، یا طالب صاحب، مُلاصاحب، خلیفه صاحب یا مجاهد صاحب شوم نو بس زه ولاړم او ما وګټله، نه داسې نه ده، بلکې ددې خلکو مسئولیت بیا په دې بل طرف کې هم زیات ده.

د چاچې ظاهري شکل او صورت له شریعت سره مخالف وي نوهغه چې ناروا کارونه کوي خلک یې هم دومره نه ملامتوي، او څوک چې په شریعت برابر وي او غلط کار وکړي نو خلک یې هم ملامتوي، نو دخدای ﷻ په نزد هم دغسې ده. په نبکانو ابتلاآت ، مصیبتونه او تکلیفونه هم زیات وي، وجه یې دا ده چې بیا په کم شي دوی ته لوی ګرفت ورکوي.

نو کوشش به کوو چې خان تر خپله وسه په شریعت برابر کړو، او له دین سره د زړه له اخلاصه مینه او محبت وکړو، نو امید شته چې خدای پاک ﷻ کله له سړي نه په داسې عمل راضي شي چې هغه دخلکو په نزد ډېر کم شی وي. له دې وجهې نه دې سړی کوشش کوي چې مستحب ترې پاتې نه شي، کله کله په مستحبو خدای پاک ﷻ له انسان څخه راضي کېږي.

## سپي ته داوبو په ورکولو سره ټول ګناهونه معاف شول

په حديث شريف کې راځي چې يو سپى ديوه کوهي په غاړه پروت و، د تندې له امله يې په ختو خولې لګولې، يو سړى راغى هغه هم ډېر تږى و، کوهي ته ورښکته شو او اوبه يې وڅښلې ،کله چې راپورته شو نو سپى يې وليد چې په ختو خولې لګوي، نو سوچ ي وکړ چې کېداى شي چې دا سپى هم داسې تږى وي لکه زه چې تږى وم، دى بېرته ښکته شو او په خپله موزه کې يې اوبه راواخيستې،موزه يې په خوله کې ونيوله او راوخوت، او اوبه يې سپي ته ورکړې، سپي اوبه وڅکلې. نو جناب حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې: خداى پاکﷻ دغه سړي ته په دې کار باندې ټولې ګناوې ورمعاف کړې، صحابهٔ کرامو‌رض ورته وويل چې: يارسول اللهﷺ! آيا په سپيو هم مونږ ته خداى پاکﷻ ثواب راکوي ؟ په دې کې هم صدقه ده؟ نبي کريمﷺ ورته وويل چې: هر ژوندي باندې چې شفقت وکړل شي دا صدقه ده، خداى پاکﷻ ورباندې راضي کېږي، ځکه د الله تعالىﷻ مخلوق ده. دا کار دخلکو په نزد معمولي ده، خو خداى پاکﷻ په دغه عمل دغه انسان ته ټولې ګناوې معاف کړې. همدارنګه يوې ښځې يو سپي ته اوبه ورکړې خداى پاکﷻ ټول ګناهونه ورته معاف کړل.

## ښځه د پیشوله وجې جهنم ته ولاړه

خو بل طرف ته په حدیث شریف کې راځي چې یوې ښځې یوه پیشو تړلې وه اوهغه له لوږې اوتندې نه مړه شوه، دهغې په سبب دا ښځه الله تعالیٰ ﷻ جهنم ته داخله کړه. یوه نیکي که وړه هم وي وړه به یې نه بولې، ګناه که کمکۍ هم وي خو کمکۍ به یې نه ګڼې، کله کله یو انسان په غټه ګناه نه نیول کېږي اوپه کمکۍ نیول کېږي، ځکه غټه ګناه ده ته هم ګناه معلومېږي، توبه ورنه باسي. کله کله کمکۍ ګناه سړي ته ګناه نه ښکاري، په هغې زړور شي، فخر او خوشالي ورباندې کوي، نو په وړوکې ګناه کفر ته ورسیږي

په نېکي کې هم دغسې ده، نه دې وړه پرېږدي اونه غټه، په غټه نیکي انسان ته عُجب، تکبر او ریا پیدا کېږي، خو که کمکۍ نیکي وکړي، خلک یې هم کمکۍ ګڼي، ده ته هم ځان غټ نه ښکاري اوپه هغه وړه نیکي الله تعالیٰ ﷻ ورځخه راضي شي.

حضرت نبي کریم ﷺ دمجاهدینو له پاره د څندې غږ وکړ چې ضرورت ده، یو صحابي ؓ ډېرې روپۍ راوړې او بل صحابي ؓ یوه کاسه خرما (کجورې) راوړې، نور یې په کور کې څه شی نه و، منافقینو اعتراضونه شروع کړل، چاچې

ډېرې روپۍ راوړې وې په هغه یې دا اعتراض وکړ چې دی خو خلکو ته ځان ښکاروي او رِیا کاري کوي، اوپه دغه بل صحابيﷺ پسې یې پسخند شروع کړ، چې په دغه یوه کاسه خرماوو باندې دی مجاهدین کامیابوي. نو الله تعالیﷻ آیاتونه نازل کړل چې دغه اول صحابي که ډېره قرباني ورکړې ده او ډېر مال یې راوړی ده، دده هم د الله تعالیﷻ رضا مطلب ده اوکه دغه بل لږ صدقه کړې ده هم مطلب یې د الله تعالیﷻ خوشالي ده.

په یوه حدیث شریف کې دي چې: کله یو سړی یو لک روپۍ خیرات کړي او بل سړی یوه روپۍ خیرات کړي ،ددغه سړي د یوې روپۍ خیرات دهغه بل سړي د یو لک روپیو خیرات ته رسیږي، ځکه ددغه مسکین په وس کې دغه یوه روپۍ وه، اوهغه بل کروړ پتي ده هغه ته دغه یو لک روپۍ هیڅ شی هم نه معلومیږي، ددې مسکین وس دغومره وه، ده ته به په دغه یوه روپۍ د یو لک روپیو نه زیات ثواب ورکول کېږي، خلکو ته خو کم معلومیږي ، خو دغه کم شی چې دخدای پاکﷻ درضا له پاره وي نو الله تعالیﷻ هم لوی انعام پرې مرتب کړي.

نو په نیکي کې به کوشش کوو نه به وړه نیکي پرېږدو اونه به غټه. اوپه ګناهونو کې به هم احتیاط کوو، هم به له صغیره ګناهونو او هم به له کبیره ګناهونو ځخه ځان ساتو.

الله تعالی ﷻ دې مونږ او تاسې ته په دې نصیحتونو باندې د زړه له اخلاصه د عمل کولو توفیق راپه برخه کړي.

آمین

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین







# (۵۳) مجلس

## دوه لوی نعمتونه او له هغو څخه غفلت

په بخاري شریف کې د حضرت نبي کریمﷺ مبارک قول ده چې: (نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ)

د خدای تعالیﷻ په خپل مخلوق باندې دوه داسې نعمتونه دي چې ډېر خلک پکې تاواني او دوکه شوي دي. یو صحت او بل فراغت ده. د الله تعالیﷻ له طرف نه په انسانانو باندې صحت یو داسې لوی نعمت ده چې د صحت په شپو کې که د آخرت له پاره سړی هرڅومره کوشش وکړي هغومره ذخیره ورته جوړولای شي، مګر خلک له دې نعمت نه غافله دي. د دنیا په کاروبار او تجارت کې که له چاڅخه یو دګتې کار پاتې شي نو ټول دوستان او ملګري یې ورباندې خفه وي، چې فلانکي ډېر غټ تاوان وکړ، ځکه چې دا یې د خرڅولو وخت و اوله ده نه تېر شو اوتاوان یې وکړ، مګر د آخرت لوري ته څوک متوجه نه دي، ځکه حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: ددغه نعمت په هکله خلک دوکه شوي، چې نن الله تعالیﷻ ورته صحت او

موقع ور کړي اودی یې په غفلت کې تېروي، له دوی سره دا موج او احساس نشته چې سبا به یوه داسې ورځ راځي چې زه به بیا مریض یم او له لاسه به مې هېڅ پوره نه وي.

بل نعمت فراغت ده، چې د دنیا له مشکلاتو څخه سړی خلاص وي، دا هم یوداسې لوی نعمت ده چې که د فراغت په شپو کې یو انسان د آخرت له پاره هرڅومره کوشش وکړي کولای یې شي، ترڅو ښه سرمایه ورته برابره کړي. خو ددغه فراغت له نعمت څخه هم ډېر خلک بې پروا او غافله دي، د فراغت په شپو کې یې الله تعالیٰ ﷻ ته پام نه وي، آخرت یې هېر وي، خو کله چې بیا له کوم مشکل سره مخ شي نو بیا یې آخرت هم په زړه شي، الله تعالیٰ ﷻ ته یې هم پام شي او په زاریو شروع وکړي، خو بیا څه فائده نه کوي.

## دحضرت سراج المشائخ د بندیخانې واقعه

جناب حضرت سراج المشائخ صاحب یو وخت د دریو شپو له پاره بندي و، نو کله چې له بندیخانې څخه خلاص شو، نوده مبارک ویل چې ما مخکې دا فکر کاوه چې دا موجوده وخت د فتنو ده، نو که یوڅوک له فتنو نه خلاصیږي نو بندیخانه به یې د خلاصېدو ځای وي، خو اوس مې چې بندیخانه ولیدله نو و مې ویل چې خدای پاک ﷻ دې مسلمان نه بندي کوي، څکه

زموږ خو دا خیال ده چې په بندیخانه کې به سړی له ګناهونو ساتلی وي، له غیبت، شیطانت او بهتان نه به سړی پکې خلاص وي. لکه په حدیث شریف کې راځي چې: په آخر وخت کې به ښه دنیا هغه وي چې سړی یوه رمه واخلي اود غرونو په لمن کې اوسیږي، خلک یې له شر نه محفوظ وي، خپل طاعت او بندګي کوي، چاته یې ضرر نه رسیږي، دا به له دې وجهې نه ښه مال او دولت وي چې سړی وربانديې د آخرت له عذابونو خلاصیږي.

نو خلیفه صاحب مبارک ویل چې: ما ولیدل په بندیخانه کې د آخرت سرمایه نه برابریږي، ځکه زړه به دې غواړي چې اودس وکړې نو څوک به دې نه ورته پرېږدي، زړه به دې غواړي لمونځ، تلاوت وکړې پیره دار به دې ورته نه پرېږدي. نوکله چې سړی له مشکل سره مخ شي بیابه هغه وخت: ستا زړه عبادت او طاعت ته ډېر کېږي خو هلته به بیا څه په لاس نه درځي.

خو اصل کار او واقعي بندګي بیا هغه وخت کېږي چې دا دواړه نعمتونه یوځای وي، یعنې هم صحت وي اوهم فراغت، کله صحت وي خو انسان فارغ نه وي، بیاهم څه نه شي کولای، کله فراغت وي خو صحت ملګرتیا نه کوي، بیاهم د انسان له لاسه څه نه کېږي، نو دا دواړه نعمتونه چې یوځای شي ډېر لوی نعمت دی اود آخرت ډېر غټ کار وربانديې جوړېږي. خو عام خلک له دې نه غافله دي.

مونږ که لږ فکر وکړو په دنیا کې اکثره وختونه مونږ روغ هم یو او فارغ هم، نه داسې مریضان یو چې ددې مرض له لاسه مونږ له بندګي نه عاجزه شو، اونه دداسې مشکل سره مخامخ یو چې دهغه له وجهې مونږ عبادت ته نه خلاصیږو، خو یواځې دومره خبره ده چې مونږ غافله یو. د اخرت ژوند ته مو پام نه ده.

زما په دې خپل کم عمر کې ذاتي تجربه ده، خصوصاً کله مې چې له خلیفه صاحبانو سره تعلق جوړ شوی دی، نو اکثره داسې ملګري به وو چې ددې نعمتونو له زوال نه وروسته به یې آرمانونه کول.

## یو فوځي کرنیل حضرت انوارالمشائخ صاحب ته عجیبه خوب بیانوي

زمونږ مرحوم خلیفه صاحب ( انوارالمشائخ صاحب ) چې دحضرت صاحب مبارک بالذات خلیفه و، یوه لویه هستي وه، له ده مبارک شخه الله تعالیٰﷻ د دین لوی کارونه اخیستي دي. یو وخت د فوځ یو لوی کرنیل ورته راغی، طالبان ډېر خفه وو چې هسې نه چې خلیفه صاحب مبارک ونه نیسي، ځکه ملیشه او زور طاقت ورسره ده، کرنیل ویل چې زما له خلیفه صاحب سره پټ کار ده، طالبان نور هم وارخطا شول، تردې پورې چې ددې اراده یې وکړه چې له ملیشې سره جنګ وکړي،

هسې نه چې خلیفه صاحب ته څه مشکل پېښ شي. خلیفه صاحب مبارک طالبانو ته وویل چې تاسې هېڅ فکر مه کوئ! نوهغه کرنیل خلیفه صاحب ته وویل چې: ببګاه مې داسې خوب لیده چې: ستاسې په دغه مدرسه کې یو لوی ترانسفارمر لګېدلی او له دې ځای نه افغانستان او پاکستان ته بجلي ورکول کېږي. نو تاسې څه کار او بار کوئ؟ اوددې خوب تعبیر هم له تاسې نه غوارم! خلیفه صاحب مبارک ورته وخندل چې: زمونږ کار د طریقت کار ده، نور اصلي حقیقت خو یې ده ته نه وایه.

خو کله چې خلیفه صاحب مبارک له دنیا څخه رحلت وکړ بیا ما ډېر داسې علماء کرام، حاجي صاحبان، صوفیان کرام او طالبان ولیدل چې ددې ارمان یې کاوه چې کاشکې مو له خلیفه صاحب سره په مجلس کې یو ځل شرکت کړی وای. کاشکې مو په ختمونو کې ورسره ګډون کړی وای.

بیاچې دحضرت انوارالمشائخ صاحب په ځای کوم خلیفه صاحب (قطب المشائخ مولوي صاحب دین محمد قدس الله سره) جانشین موجود و، بیا مو هم له غفلت څخه کار واخیست او توجه به مو نه کوله،خو کله چې هغه مبارک وطن ته ولاړ بیا مو ارمانونه کول چې خلیفه صاحب دلته نږدې و نو مونږ به خپل هر ضرورت ورته وړاندې کولای شوای، اوس مو موقع له لاسه ووته.

## د سراج المشائخ صاحب په فراق مریدان څومره افسوس کوي؟

مونږ چې د سراج المشائخ صاحب جنازې ته ورغلي و، نو بې شمېره مخلوق یې جنازې ته راغلی و، هلته مې دده له مریدانو مولویصاحبانو اونورو خلکو نه په ژړا کې دا خبرې اورېدې چې مونږ خو اوس یتیمان شو اودغه الهي نعمت مو له لاسه ووت.

حتی یو مولویصاحب راته ویل چې: زمونږ د آخرت له ده سره دومره فکر و چې کله به ده ته خلیفه صاحبان اونور عزتمن مېلمانه راغلل نو په ما پسې به یې شخصي یو نفر راولېږه چې ورشئ او دی راوغواړئ، خو زه دومره ناپوه وم چې په دې نه پوهېدم چې دی مې د څه له پاره غواړي. اودا مې په خیال کې نه وو چې دی مې ددې له پاره غواړي چې ترڅو د هغو نېکانو خلکو په دعا کې زه هم شریک شم، په وظیفو کې ورسره شریک شم، خو اوس یې ارمان کاوه چې هغه مجلس اوهغه ماحول او محیط مو له لاسه ووت. ډېرو مولویصاحبانو به ویل چې مونږ به یواځې نه پرېږدئ او دغه ځای ته به تاسې راځئ مونږ خو یتیمان شو، له چاسره به ختمونه کوو، له چاسره به ناسته پاسته کوو ؟

نوکورئ ! د نعمت قدر له زوال نه وروسته معلوميږي ، د نعمت له زوال نه وروسته بيا آرمانونه کول کومه ګټه نه لري، نن چې الله تعالی ﷻ کومه موقع اووخت درکړی دی، ددې قدر وکړئ ، وخت مه ضائع کوئ، بيابه د آخرت په ورځ لاس او ښنې وهئ او څه ګټه به درته نه کوي.

دغه مدرسه ده، دا دخدای پاکﷻ د نعمت يو مظهر ده، طالبان او ملايان وجود لري، دلته مونږ ته لا ددې موقع شته چې د نېکانو په مجلس کې شرکت وکړو، خو بيابه ددغه ځای هم ارمان کوو.

## فارغېدونکي طالبان څه وايي ؟

دا اوس چې کوم ملګري فارغيږي ، دا خو د خوشحالۍ ځای ده چې سړی د علم هغه آخرنۍ مرحلې ته رسيږي اود خدای پاکﷻ د دين د خدمت له پاره ملا تړي، هلته د دين اود مسلمانانو دخدمت او رهنمايي له پاره ځان تياروي، خو سره له دې هم دا ملګري افسوس او ارمان کوي. پرون ماته يوه ملګري په ډېر افسوس سره دا خبره کوله چې: زمونږ له پاره خو مدرسه ډېره ښه وه، دلته مو پکې ختمونه کول اوله نېکو خلکو سره مو په مجلسونو کې شرکت کاوه، خو که وطن ته ولاړ شو، نو له مونږ سره نږدې په خوا کې کوم خليفه صاحب

نشته چې زمونږ کار ورسره روان شي، خدای خبر چې هلته به بیا څرنګه ژوند کوو ؟ ډېرو ملګرو داسې ویل چې مونږ به اوس له خپلو ورونو سره څنګه ګوذاره کوو ؟ ځکه هغوی له دین نه ناخبره دي، زمونږ د دغه علم قدر له هغوی سره نشته.

نو ګورئ فکر وکړئ ! سره له دې چې طالب ده، خو د دغه فراغت او صحت قدر لا ورته نه دی معلوم.

ډېر داسې طالبان چې په ځینو کارونو کې به یې کوشش نه کاوه اوس چې آخر وخت راغی نو ارمان کوي.

هلته په میرانشاه کې به هم مونږ الحمدلله د مشائخو په برکت له جمعې څخه وروسته مجلس کاوه، ښه جوش به و، کله چې مو دعا وکړه نو له یو خلیفه صاحب سره مې ولیدل، له سترګي مشي وروسته یې راته ډېر وژړل چې: قسم ده په طالب پسې مې سترګې وځي، په داسې ځای کې ګېر یو چې په ټوله روژه کې یوه تراویح مو په جمعه کړېده، پخوا مې په وطن کې مدرسه وه، د طالبانو خدمت مې کاوه، اوس خپلې مدرسې ته نه شم ورتلای، هرڅه راڅخه پاتې دي، دا مې ارمان وي چې کاشکې له یوه طالب سره پنځه دقیقې ناست وای، ده ماته د زړه حال ویلی وای او ما ده ته.

نو د دنیا ژوند تېرېدونکی ده، باید چې په غفلت کې تېر نه شي، ډېر مولویصاحبان او طالبان تر سپین ږیرتوب پورې په غفلت کې وي، ډېر داسې شیخان مې لیدلي چې وایي:

دحضرت صاحب نه راوروسته مې له هیچا سره تعلق نه دی ساتلی. یواځې د خان خبره درته نه کوو، ټول په غفلت کې اخته یو. لنډه داچې وخت ډېر قیمتي ده باید چې په ناخبري کې یې تېر نه کړو. په دغو دوه وو نعمتونو ډېر لوی کارونه کېږي، که صحت ده که فراغت، په دې باندې د آخرت له پاره ښه بهترینه سرمایه برابرېږي، خو که مونږ له غفلت څخه کار واخلو، دا نعمتونه به مو له لاسه وځي، دغه ځواني اود بدن صحت هر وخت نه وي، که ستاسې دا خیال وي چې له دې نه وروسته به مونږ داسې کار کوو،هغه به کوو، د سکون ژوند راروان دی، مونږبه بیا هلته کارکوو، داهسې یو خوب دی.

نن هم راته چا ویل چې ګرمي ډېره ده، ما ویل چې: دا هم د الله تعالی ﷻ رحم ده، که زمونږ د اعمالو تقاضا شي نو مونږ ددې لاتق یو چې ددې ګرمي په ځای په اور وسوځول شو، څکه روغ جوړ او صحت ښه برابر ده، ښه د فراغت ژونده، خولمونځ نه کوو، روژوې نه نیسو، دالله تعالی ﷻ حقوق نه ادا کوو، په ښکاره د الله تعالی ناشکري کېږي.

په مخکنیو امتونو کې چې به ښکاره نافرماني شروع شوه او بې ادبي به پیل شوه، نو بیا به الله تعالی ﷻ هغه قوم په عذاب سره نیست ونابود کړ، خودا دحضرت نبي کریم ﷺ د دعاګانو برکت ده، د رحمت للعلمین ﷺ د ژړاوو اودده د تکلیفونو په برکت الله تعالی ﷻ په مونږ باندې هغه عام مصیبتونه نه راولي په کومو چې یې مخکني قومونه هلاک کړي دي.

مخکني قومونه به دیوې ګناه له امله تباه کېدل، د حضرت شعیب قوم و چې هغوی به په تله کې کمبوت کاوه، دوه کاسې به یې وې، یوه غټه او بله وړه، له بل نه به یې چې څه شی اخیستل په غټه به یې اخیستل او که به یې چاته څه ورکول نو بیا به یې په وړه کاسه ورکول. ددغې یوې ګناه له امله خدای پاک ټول قوم تباه کړ، نن سبا تاسې وینئ چې په کیلو، سیر، ګز او میټر بلکې په اکثرو شیانو کې دغه دوکه کېږي.

د یوه لواطت له وجهې چې د لوط قوم دا عمل کاوه، خدای د لوط قوم داسې تباه کړ چې ځمکه یې په ځټ مخ وراندې واړوله. تاسې ووایئ نن هغه عمل په مسلمانانو کې شته کنه؟

د یوه سود په معامله باندې الله تعالی قومونه برباد کړي دي، نن دا عمل په مسلمانانو کې څومره په زور او شور روان ده ؟

تفاسیر لیکي چې: په آخر اُمت کې به د پخوانیو قومونو دغه ټول ګناهونه یوځای کېږي اوپه ښکاره به د الله تعالی نافرماني کېږي، خلک به فخر وراندې کوي، خو د حضرت نبي کریم مبارکې سترګې دي چې دا دنیا په مونږ نه رنګیږي او عام عذابونه په مونږ نه راځي. مخکنیو خلکو چې به عبادت کاوه نو له هغې سره به هم له خدای نه ډارېدل، خو له ګناه سره هم له خدای پاک نه نه ډارېږو.

د قرآن کریم ددې آیت په تفسیر کې چې الله تعالیﷻ فرمایي: ((وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ)) هغه څوک چې کوي هغه کارونه چې کوي یې او زړونه یې ډارېږي. حضرت ام المؤمنین سیدتنا عائشة صدیقه رضی الله عنها فرمايي چې: ما له حضرت نبي کریمﷺ نه پوښتنه وکړه چې دغه خلک چې په کوم کار لګيا دي خو زړونه يې ډارېږي چې خدای پاکﷻ ددغو خلکو صفت کړی آیا له دغو خلکو نه زانیان، غله او بدعمله انسانان مراد دي ؟ چې ګناه کوي او له خدای پاکﷻ نه ډارېږي ؟ نو بیابه خدای پاکﷻ په هغوی باندې رحم کوي ؟ نو حضرت نبي کریمﷺ راته په جواب کې وویل: ( لاَ يَا بنتَ الصديق ! ) نه ! ای د صدیق اکبر لورې ! دا آیت ددې خلکو په باب کې نه دی، بلکې دا دهغو خلکو په حق کې دی چې: ((الَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا)) چې لمونځ کوي، روژې نیسي، علم حاصلوي، جهاد کوي، صدقه او زکات ورکوي ((وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ)) خو بیایې هم زړونه ډارېږي چې آیا زما دا عبادت قبول شو او کنه ؟

ښکه خو به صحابهٔ کرامو﷠ له ډېر عبادت سره سره خدای پاکﷻ ته ژړل. الله تعالیﷻ فرمایي: ((فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ۝ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَبْ)) کله چې له لمانځه څخه فارغه شوې بیا خدای پاک ته ښه وژاړه، په دعا ځان ستړی کړه.

که یوڅوک حج وکړي نو شپږ میاشتې به دعا کوي چې خدایه پاکه ! دا حج مې قبول کړې، آینده شپږ میاشتې به بیا دا دعا کوي چې خدایه پاکه ! په آینده کې بیامې حج نصیب کړې.

نو که څوک لمونځ کوي، روژه نیسي، جهاد کوي، علم حاصلوي ، بیابه هم له خدای ﷻ نه ډاریږي ، پس له هغې به بیا دی د رحمت مستحق ګرځي.

## په حضرت زین العابدین به له اوداسه وروسته کوم حالت راتلو؟

حضرت زین العابدین بن الحسین بن علي رضی الله عنه چې د حضرت علي رضی الله عنه لمسی ده، هغه به چې کله له اودس نه فارغ شو او بیابه د لمانځه ځای ته راغی، ټول بدن به یې رپېده، رنګ به یې ژېړ شو، چا ورڅخه پوښتنه وکړه: چې کله اودس وکړې نو رنګ دې بدل شي او بدن دې په رپېدا شروع وکړي، ده ورته وویل: چې ته له دې څخه خبر یې چې زه اوس د چا په مخکې درېږم ؟ د چا په حضور کې ولاړ یم، له چاسره مناجات او خبرې کوم؟ لمونځ له خدای پاک ﷻ سره خبرې راز او نیاز ده، هلته مونږ خدای پاک ﷻ ته مخامخ وایو چې: ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ۝﴾

یواځې تاته عبادت کوو خاص له تاڅخه معاونت غواړو، نو لمونځ په حقیقت کې له خدای تعالیﷻ سره مکالمه ده.

د دنیا له یو وړوکي منصبدار سره چې مخامخ شې نو ژبه یې ودرېږي او خبرې نه شي کولای، له خپل استاد او شیخ سره چې مخامخ شي نو غږېدای نه شي، نو هغه الله تعالیﷻ چې ستا د بدن د هر اندام له هر عمل څخه خبر او ستا په زړه عالم ده اوبیادهغه په حضور کې ولاړ یو ، خو بیاهم دا سوچ راسره نه وي چې زه چاته مخامخ ولاړ یم. اوله چاسره غږېږم.

یو بزرګ فرمایي چې: که ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ۝﴾ دقرآن کریم آیت نه وای ، او یا د ﴿ الحمد لله ﴾ ویل په لمانځه کې لازم نه وای نو قسم ده که ما په ټول ژوند کې په لمانځه کې دا آیت ویلی وای ، ځکه چې په دې خبره کې مونږ دروغجن یو، په خوله وایو چې خاص ستا عبادت کوو او خاص له تاڅخه مرسته غواړو، حالانکه مونږ په څه لګیا یو، په ریاکاري اخته یو، ټوله توجه او التجاء مو انسانانو ته وي.

حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: په لمانځه کې به مخامخ د قبلې طرف ته لاړې نه تو کوي، ځکه د لمونځ کونکي او کعبې شریفې تر منځ الله تعالی ده، لمونځ کونکی دهغهﷻ حضور ته ولاړ ده.

اوس تاسې فیصله وکړئ چې : زمونږ لمونځ څومره بې حضوره وي، سلام لانه وي ګرځېدلی مونږ نبغ روان شو، دعا

نه کوو، دا څه وجه ده ، وجه یې دا ده چې له الله تعالیٰ ﷻ نه
ډېره او خوف نشته، دا سوچ راسره نشته چې دا سوال وکړو
چې: خدایه پاکه ! دا لمونځ مې قبول کړې.

مخکني خلک ټول د شریعت نمونې وې، دهغوی په وسیله
خدای پاکﷻ مونږ ته د دین رڼاګانې را ورسولې. دهغوی
بنیادي وجه دا وه چې هغه خلک په واقعیت کې له خدای
پاکﷻ نه وېرېدل، خپل اعمال ورته غټ نه ښکارېدل اونه په
خپلو عملونو دوکه کېدل.

## د حضرت ابراهیم خلیل الله علیه السلام زیاته ژړا

حضرت ابراهیم علیه السلام ته په انبیاوو علیهم السلام کې (
خلیل الله ) وایي، معنا یې دا ده چې یواځې او یواځې یې له
خدای سره مینه وه، نور یې هېڅوک په دې مینه کې شریک نه
وو، خو چې کله به د الله تعالیٰﷻ هغه د جلالیه صفاتو انوار په
ده باندې غالب شول نو دخدای پاکﷻ له وېرې به یې دومره
ژړل چې تر یو میل پورې به یې د ژړا غږ رسېده. الله تعالیٰﷻ
حضرت جبرئیل علیه السلام ورته راولېږه چې: زما خلیل ته ورشه او زما
سلام ورته وایه، اودا هم ورته ووایه چې: دوست له دوست نه
دومره ډارېږي ؟ ته خو ( خلیل الله ) یې! ته څرنګه له ماڅخه
دومره ډارېږې ؟ حضرت ابراهیم علیه السلام ورته په خواب کې قسم

کوي چې: کله مې په ذهن کې د الله تعالیٰﷻ لويي راشي اوخپلو تقصيراتو ته متوجه شم، نو دا مې هېره شي چې زه دخدای پاکﷻ دوست او پيغمبر يم.

حضرت نبي کريمﷺ چې په ټولو مخلوقاتو کې اعلی ترين او بهترين مقام دده ده، خو په لمانځه کې به يې بيا داسې ژړل چې د سينې مبارکې به يې داسې غږ راووت لکه کټو اويا چای جوش چې جوش خوري، يا لکه ميچن چې ګرځوي، په لمانځه کې به دومره ولاړ و چې پښې مبارکې به يې وپړسېدې. صحابهٔ کرامو﵃ به ويل چې: کاشکې د لارې د غاړې يو بوټی وای، چې حيواناتو خوړلای وای څکه له هغو نه پوښتنه نشته، له مانه خو به پوښتنه کېږي.

اصل مطلب داچې بايد خپل مسئوليت ته متوجه شو، ددغو دوه نعمتونو قدر وکړو، صحت او فراغت غنيمت وګڼو، خدای مکړه که دلته څه مشکل له کوم طرف نه راپېښ شي، بيابه دغسې مجلس نه شو کولای.

دغسې وخت په ميرانشاه کې هم و، طالبان و، مدرسې وې، د درس حلقې او خانقاګانې وې، خو چې د بنده حکم راغی چې کډې بار کړئ نو بيا له هغې وروسته خلکو ارمان کاوه چې کاشکې مو دا وخت هسې عبث نه وای تېر کړی. خو بيا د نعمت له زوال څخه وروسته ژړا او فرياد کومه ګټه نه لري.

کله چې واقعي عشق او محبت وي نو چې مرید له پیر نه بېل شي، شاګرد له استاد نه، دوست له دوست نه نو بیا سړی پوه شي چې کاشکې مې له وخت نه استفاده کړې وای.

نو څومره مو چې وس وي د خدایﷻ ددغو نعمتونو قدرداني وکړئ، له نېکو خلکو سره علاقه دوامداره ساتئ، په مجلسونو کې یې شرکت کوئ، د عبادت طرف ته تلوار کوئ، څکه مرګ پټ ګذار کوي، نېټه یې معلومه نه وي چې څه وخت به راځي ؟ دقیامت په علامتو کې راځي چې: یو سړی به خولې ته مړی پورته کړي خو قیامت به وربانديې راشي او مړ به شي، دا اوس هم داسې مرضونه شته چې پیاله ورته ډکه وي او دی مړ شي،له کوره ووځي او بېرته یې مړی ورته راوړي.

له حضرت نبي کریمﷺ نه چاپوښتنه وکړه چې: قیامت به څه وخت وي ؟ حضرت نبي کریمﷺ په دغه مجلس کې یوه کشر ته اشاره وکړه چې دغه به لا سپین ږیری شوی نه وي چې په تاسې به قیامت راشي. نو په دې کې اشاره دې ته وه چې انسان څرنګه مړ شو قیامت یې شروع کېږي، یعنې کشر به لا سپین ږیری نه وي او مشران به مړه شي نو قیامت یې شروع ده. ( اذَا مَاتَ الانْسَانُ فَقَدْ قَامَ قِيَامَتُهُ ) کله چې انسان مړ شو نو قیامت یې شروع ده، فی الحال یا عذاب ده اویاهم راحت.

وروسته به بیا افسوس کوو، دقیامت د ورځې یو نوم ( یوم الحسرة ) ده، یعنې د ارمان ورځ، بیابه هلته نېک عمله انسان

هم ارمان کوي چې کاشکې مې ډېر عمل کړی وای او بدعمله به هم ارمان کوي چې کاشکې مې توبه په دنیا کې ایستلې وای، داچې د ژوند په پای کې ارمان کوو، یاپه آخرت کې ارمان کوو، که له سپین ږیري نه پوښتنه وکړو هغه هم په تېر عمر او ځوانۍ ارمان کوي، که لږ عقل ولري هغه هم ارمان کوي چې هسې مې ژوند عبث تېر کړ، علم مې ونه کړ، د دین خدمت مې ونه کړ، دآخرت له پاره مې څه ذخیره برابره نه کړه، نو دا چې په ژوند کې ارمان کوي نو په قیامت کې خو به خامخا ارمان کوي خکه چې دهغې یو نوم (یوم الحسرة) دی، نورهم ډېر نومونه لري، لکه (قارعة، غاشیة، التغابن) دی چې بیابه هرڅوک ارمان کوي.

له دې وجې نه حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: (مُوتُوا قَبْلَ أَنْ تَمُوتُوا) ځان مړ وګڼه مخکې له دې نه چې ته مړ شې، اوس له ځان سره فیصله وکړه چې زه مړ شم اوپه قبر کې مې ښخ کړي، له ماسره ملائکې سوال اوجواب شروع کړي نو زه به په کوم عمل خلاصیږم ؟ له ځان سره چې دې محاسبه شروع کړه داد خلاصېدو لاره ده. له ځان سره حساب کوه چې که داکار وکړم نو قابل د رَحَم یم اوکه دا غلط کار وکړم نوبیا به د قبر له عذابونو سره مخامخ کېږم.

که دا سوچ له چاسره پیداشو نو آخرت کې هم کامیاب ده او دنیا یې هم ګل ګلزار ده، بیابه ارمان نه کوي، بیابه د راحت

معامله ورسره کېږي، دخوشحالۍ مرحلې به يې شروع کېږي او تکليفونه به بالکل نه وي.

الله تعالی ﷻ دې زمونږ ټولو سوچ او فکر د آخرت طرف ته وګرځوي.

آمین ثم آمین.

وَاٰخِرُ دَعوَانَا اَنِ الحَمدُ لِلّٰهِ رَبِّ العٰلَمِینَ

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

  

# (٥٤) مجلس

## په انسانانو باندې درې لوی امتحانونه

﴿ تَبَٰرَكَ ٱلَّذِي بِيَدِهِ ٱلْمُلْكُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلْمَوْتَ وَٱلْحَيَوٰةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ۚ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْغَفُورُ ۝ ﴾

خداوندمتعال ﷻ دانسانانو اوپیریانو په پیداکولوکې لوی حکمت ددغو انسانانو اوپیریانو تجربه کول دي خداوندمتعال ﷻ ژوند اومرګ ددغه له پاره پیدا ده که همیشه ژوندون وای مرګ نه راتلای بیاهم دامتحان ثمره نه ښکاره کیده اوکه مرګ وای بیرته ژوندون نه وای بیاهم دامتحان ثمره نه ښکاره کیدله، خدای پاک یو وار په دنیاکې ژوندون خلکوته ورکوي له لیږ وخت نه نیولې تر ډیره وخت پورې دچالږ وخت اودچا ډېر وخت بیا دهغه نه وروسته په دغو مخلوقاتوباندې مرګ راولي ،دمرګ نه وروسته بیا ژوندون راولي ،ددې له پاره چې دغه دنیا اول ژوندون دانسانانو دامتحان ژوندون ده ،دپیریانو دامتحان ژوندون دی، اودوهم ژوندون ددغه امتحان دنتیجې ژوندون دی چې په دغه امتحان کې چاڅه کړې اوله دغه سره به بیاهلته څهٔ کېږي ،خدای پاک ﷻ مرګ اوژوندون ددې له پاره پیدا ده چې دتاسو امتحان

داخلي چې تاسو کوم یوډېر ښه ده په اعتباردا عمالوسره چې ځومره ډېرښه وي هغه خدای پاک ﷻ ته ډېر محبوب دی کوم یو په امتحان کې ښهٔ کامیاب دی ،دهغه لپاره دخدای پاک له طرف نه ډېر ښه انعامات تیار دي۔

## دانسان په زندګي کې امتحانونه

خو دغه امتحاني زندګي دانسانانو په دنیاکې چې خدای پاک پیداکړې ده په څوقسمه په انسانانو باندې امتحان راځي۔
موهم امتحان په انساناتوباندې په اعتبار دعمل سره ده ،داچې خدای پاک ﷻ لمونځ ،اودس ،روژه، زکات ،حج ،جهاد ، علم ،قرباني ،سرسایه اوصلې رحمي اوداسې نورنیک اعمال په خلکو مقرر کړې دي ،ورسره یې غلا ،زنا ، درواغ،غیبت، رشوت، خیانت،غصب ،قتل ،ظلم ،پوچ الفاظ ،بهتان ،شیطانت ، حسد ، تکبر اوعجب اوداسې نورکارونه حرام کړې دي ،دا اصلا مهم شی د امتحان دتجربې دا امر اونواهي دي چې خدای پاک ﷻپه کوم شي امر کړی دی چې دا اوس یې څوک په ځای کوي اوکه نه یې په ځای کوي اودغه امتحان کې رب تعالی خپله انسانانو ته اختیار ورکړی ده۔

حضرت نبي کریم ﷺ به دکفارو په نه ایمان راوړلو ډېر غمجن کیده ،ډېروعظ اونصیحت به یې ورته وکړچې هغوی به ایمان نه راوړلو نوده به ډېر ژړل اوخفه کیده به۔

الله تعالی ﷻ ورته وایې چې ته دومره غمه چې کافر ایمان نه راوړي ،ځان وژني که زما اراده ددې وایې په زوره خلک مسلمان کړم نوداسې معجزه به مې ورښکاره کړې وه چې بیا به دهیچاهم دمخالفت طاقت نه وه ،زه یې په زوره هم مسلمانه والای شم ،لکن دنیا دامتحان ځای ده په زوره کار زه نه کوم یعنې الله تعالی قادر ده خوپه امتحان کې یې خپله خلکوته اختیار ورکړی ده چې په خپله خوښه روژه ونیسي اوکه نه ؟لمونځ کوي اوکه نه ؟نور اوامر په ځای کوي اوکه نه ؟اوذهغو نواهیوڅخه چې انسان منع کړشوی دی له هغو څخه په خپله خوښه ځان منعه کوي اوکه نه ؟

نولوی امتحان په اعمالوکې ده اوپه دغه امتحان کې یې دکوشش کولواختیار موږ ته راکړی دی اوورسره یې دارحم هم راباندې کړی دی چې دامتحان دکامیابي ځایونه یې هم راښودلې دي.

مثلا په مدرسوسکولونواوپوهنتونوکې چې امتحان دطالبانو اوشاګردانو اخیستل کېږي نوکوم استاذ چې نفس اشاره،کوم ځای ته وکړي دوی داستاذ داډېرلوی احسان مني چې پدغه ځای کې استاذ اشاره کړې وه ،کیدای شي امتحان پدغه ځای کې راشي داځای به موږ سم زده کړواوخدای پاک ﷻ اشاره نه ده ورته کړې بلکې په واضحه توګه یې ښودلې دي ،په ښکاره یې بیان کړې دي.

دالمونځ ده اودایې نتیجه ده ، داروژه ده اودایې نتیجه ده، دازکات دی اودایې نتیجه ده، داعلم ده اودایې نتیجه ده،داجهاد

دی اودایې نتیجه ده نوهرڅه یې په ښکاره بیان کړې دي اوورسره ورسره یې ۱۰۴کتابونه او ۱۲۴۰۰۰زره انبیاء یې دخلکو دپوهې لپاره رالیږلي چې په دغه امتحان کې کامیاب شي اودشک ځای ورته پاتې نشي.

اوهمدارنګه دهغونه وروسته چې دهغو وارثان چې په میلونودي بیایې په بدن کې دقابلیت دزده کړې شیان پیداکړې دي ،سترګې یې راکړي چې ورباندې وینو ،غوږونه یې راکړي چې خبرې ورباندې اورو ،که په خپله نه ورباندې پوهیږو له بل نه یې زده کولای شو، عقل یې راکړی چې دخبرو سوچ ورباندې کوو اوددغو احساناتوسره سره یې په دې یې هم خبرکړې یو چې په دې امتحان کې ناکامي په یوه وجه درباندې راغلي اونفس اوشیطان درباندې غلبه وکړي بیرته په دنیاکې دخلاصیدلو لار مې هم درته خلاصه کړې ده.

داسې نه ده چې نه یوځل ناکام شوې پرچه دې ختمه شوه اوبیا دې کارنه کیږي ،نه بلکې که بیرته کوشش وکړو سوال غلط درنه حل شوی وي نوتوبه وباسئ دخدای پاک ﷻ دربارته رجوع وکړئ ،ژرا وې وکړئ،نوهغه لیکل شوی شي ،چې دهغه نتیجه داده چې په جهنم کې پرې غوزول کیږو هغه ټول په دنیاکې درته ختموي.

یعنې دهر چې غافله نشو نواخرت ته دګناه سره دورتګ لار دیره نشته ،خوداچې بیا د دومره ښوونو اویادونو سره اخرت ته دګناه سره ځو، وجه داده چې موږ غافله یو.

## حضرت عبدالله بن عباس ﷺ د مرغانو په ژبه پوهېده

په قرانکریم کې راځي چې حضرت سلیمان علیه السلام ته خدای پاک ﷻ دمرغانو په ژبه هم علم ورکړی و، تفسیر لیکي چې ابن عباس ﷺ ته چې دحضرت نبي کریم ﷺ داکازوی ده، هغه ته یهودیان راغلل ورته وایې چې موږ دتانه په یوڅو شیانوکې پوښتنه کوو که راودې ښودلې نوموږ بیا ایمان راوړو اودتاسو دین حق دی ،نودوی دحیواناتو د آوازو پوښتنې وکړې چې قنبر مرغه څه وایي؟ هغه دا وایې ﴿ اللهم العن مبغض محمد ومبغض ال محمد ﴾ خدایه ! ته ذحضرت نبي کریم ﷺ اودده دکورنۍ په دښمنانو لعنت وکړې، دامرغه همیشه خدای پاک ته داسوال کوي ځکه چې دغه مرغه دحضرت نبي کریم ﷺ سره محبت لري. اورسول الله ﷺ رحمت دعالم دی اوچې له رحمت سره څوک دښمني کوي هغه درحمت لائق نه دی.

دچرګ په هکله یې پوښتنه ورنه وکړه. ده ورته وویل چې چرګ دا وایې :﴿ اذکروا الله یاغافلون ﴾ ای غافلانو خدای پاک ﷻ یاد وئ.

اوس نو چرګ یو مرغه دی چې په هغوګنده ګیوکې دده ژوند دی ،زموږ اوتاسې دخوراک شی ده لکن هغه موږ ته نصیحت کوي چې ای غافلوانسانانو دخدای پاک ﷻ یادونه کوئ.

آس چې دجنګ میدان ته ورګډ شي نوپه ششنیدا کې داوایې
﴿ سبوح قدوس رب الملائکة والروح ﴾ دالله تعالی ﷻ تسبیح
اوپاکي بیانوي ،ځای دی ذکر دی چې دلته دخدای پاک ﷻ یادونه
وشي نوبیا خدای پاک ﷻ نصرت درسره کوي.
چونګښه چې خدای پاک ﷻ په اوبوکې یوضعیف مخلوق
پیداکړی ،هغه وایې : ﴿ سبحان للمعبود فی الحجج البحار ﴾ پاکي ده
هغه خدای پاک ﷻ چې دده عبادت دریابوتوپه منځ کې هم کېږي.
نوکه په دریابونوکې حیوانات دي هغه هم دخدای پاک ﷻ په
ذکر باندې لګیا دي.
اوجنت یې ما اوتاته تیار کړی ،دا دخدای پاک ﷻ داسې
مخلوقات دي چې یواځې دالله تعالی ﷻ داحساناتو شکریه اداء
کوي،خوعقل دانسان لپاره،علم دانسان لپاره،ښکلی وجود
دانسان لپاره،کمال دانسان لپاره اوپه اخرت کې جنت اوانعامات
اودرب تعالی دیدار هم دانسان لپاره اوددوی لپاره هیڅ شی هم
نشته.
خودایواځې دخدای پاک ﷻ په دوی باندې احسانات دي
،دوی وخت په غفلت نه تیروي،انسان چې خدای پاک ﷻ ترټول
مخلوقات نه اشرف پیداده اوټول مخلوقات یې دده دګټې لپاره
پیدا کړې دي هغه بیا خپل وخت په غفلت تیروي خوددغه غفلت
دویښولو لپاره الله تعالی وخت په وخت موږ ته تنبیه راکوي
،امتحان ده ، بیدارشه!

په مونږ باندې چې خدای پاک ﷻ روژه فرض کړې ده ددغې اصلي هدف اومقصد خدای پاک ﷻ ذکرکوي :﴿ لعلکم تتقون ﴾ په تاسو روژه ددې لپاره فرض شوه چې تاسو له خدای پاک ﷻ نه وډارشئ . دا اوس په انسانانو باندې دخدای پاک ﷻ له طرف نه امتحان راغلی ،که چېرې دغه روژه چا په صحیح معنا ونیوله نوپه هغه کې ویره اوله ګناهونوڅخه اجتناب پیداکېږي ،بیاکامیاب شو بیا داسې کامیاب شو چې ددغې روژې په برکت مخکې یې کومې ګناوې کړې هغه ټولې ورته معاف کوي،هغه دده عمل نامه چې چټله لیکل شوې وه هغه بیرته ورته صفاکوي، ددغه روژې نه ترمخکې روژې چې څومره صغائرګناهونه شوې وي هغه ټول ورته معاف کوي اوچې کله ګناوې معاف شوې نودغه انسان دخدای پاک ﷻ ددوستانو له جملې نه ګرځوي . ځکه چې دخدای پاک ﷻ په امتحان کې کامیاب شو.

دالله تعالی ﷻ دوستي له تقوا پرته نه پیداکېږي ځکه خداوندمتعال ﷻ چې فرمایي ﴿ إِنْ أَوْلِيَآؤُهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُتَّقُونَ ﴾ بیا خپله متقیانوته خدای پاک جنتونه تیارکړې دي : ﴿ إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ﴾ دمتقیانو بیا کامیابي وي، باغونه ،ښځې ،حورې اوغلمان دي ،دشرابو اوشیدو ډک جامونه دي اومیوې دي ،داټول ددې دنیا دمتقیانو له پاره دي.

نوپه عبادت کې امتحان ده پدغه امتحان سره انسان صفاکېږي ،متقي کېږي، په تقوا سره انسان دخدای پاک ﷻ

دوست گرځي اودخداى پاک ﷻ ددوستي په نتيجه کې بياداسې دجنت انعامات ورکوي چې نه په دنياکې چاليدلي اونه يې په غوږو دهغوپه هکله څه اوريدلي اونه دچاپه زړونوکې دهغوى تصورتيرشوى.

نواول مهم امتحان په انسان دعباداتو دى، که انسان په دې امتحان کې کامياب نه شو نوبيا خداى پاک ﷻ نورامتحانونه وربانديې راولي ،چې عاجزه شي گونديې خداى پاک ﷻ ته راجع شي،کله بيا مرض وربانديې مسلط کړي اوکله بيا ظالم بادشاه وربانديې مسلط کړي ،کله کفار وربانديې غالبه کړي بيا يې په دې قسمه امتحاناتوکې راولي،ځکه چې خپل عبادت اوخپله وظيفه يې ونه پيژانده.

نوپه دنياکې يې خداى پاک ﷻ پدغه پوهوي چې گوره چښتن دي زه يم، په خپل غنا اومړښت ،په خپله ځواني اوقوت بانديې دوکه نه شئ،مريض کوم دې هم زه ،مسکنت هم زه دربانديې راولم،مظلوم کوم دې هم زه.

نوبيا دا امتحان په خلکو بانديې راولي داچې دځومره تکليفونه سره انسان مخکښي دادخپلواعمال نتيجه ده، په هغه کې بيا که څوک کامياب شول،صبريې وکړ،خداى پاک ﷻ ته يې غاړه کښښوده ،عاجزي يې مختاره کړه،دخپل گناهونو نه توبه گار شو بيا پدغه امتحان کې داگته ده چې هغه مخکني ټول گناهونه خداى پاک ﷻ ورته معاف کوي، باغي و،خو عاجزشو

خدای پاک ﷻ ته یې غاړه کیښوده بیا نو توبه ګار شو خدای پاک هغه ګناوې ددغو تکلیفو په ذریعه ورته معاف کوي.

که بیا پدغه امتحان کې هم دا انسان پوه نشو او دایې وویل چې دنیا ده کله به انسان مریضیږي، کله به بیا روغ رمټ وي، کله به مسکنت وربانديې راځي اوکه به مالداره کیږي سوچ ونه کړعقل یې کارپرینبود ،دایې ونه ویل چې دا دخدای پاک ﷻ په ماباندې یو امتحان را وستلی نوبیا الله تعالی ﷻ پدغه انسان دریم امتحان راولي اوداډېر خطرناک امتحان دی هغه دا چې په دې انسان باندې درزق آزادي راولي ،مالداره شي ،قدرت ورډېر کړي،صحت یې برابر کړي.

په دې امتحان کې انسان دسختې خطایې سره مخامخ کیږي ځکه چې په مرض ،مسکنت اومظلومیت کې خوله انسان سره عاجزي وي ،بغاوت نه شي کولای.

نوکه په دې یوه طریقه هم اصلاح نه شو نوبیا خدای پاک ﷻ نورنعمتونه هم ورزیات کړي او استدراج ته یې ورسوي اودافکر کوي چې داهرڅه زه کوم ،نوورځ په ورځ ،ساعت په ساعت یې دګمراهي طرف ته زورونه کوي.

هغه مخکې داسې امتحانات وچې په هغوکې ګناهونه وربانديې ختمیدل اودا داسې امتحان دی چې ګناهونه یې ساعت په ساعت ورزیاتیږي.

تاسو به ډېر خلک لیدلي وي چې څرنګه لیږ په خیته موړ شي نودستي تلویزون کورته راوړي، سینما او د ( وي سي ار )

خابونو ته تګ راتګ زيات شي ، شراب څښتل شروع کړي، په بل مسلمان ناحقه ظلم شروع کړي، خواهشات ورباندې غالبه شي په زنا اخته شي،په لواطت اوبدعملي لګيا شي، نو ورځ په ورځ يې خداى پاک ﷻ بيا غرقوي ؛نودا بيا خطرناک امتحان دى ،ټول په دې دوکه دي چې زه ښه سړى يم چې ماته خداى پاک ﷻ ډېر مال او اولاد راکړى ؛نو دتوبې طرف ورنه هيرشي ،دې ته يې پام هم نه وي چې دادالله تعالى ﷻ احسان ده،شکريه به يې اداء کړم اودې ته يې پام نه وي چې غرق به شم توبه به وباسم،نو نوريې خداى پاک ﷻ غرقوي.

کفار هم په دې خبيثه دنيا دوکه وو چې دانبياء عليهم السلام مقابلې به يې کولې اوبيا به يې ورته وويل چې تر تا نه موږ خداى پاک ﷻ ته ورنږدې يو ،له تانه يې موږ ته ډېره دنيا راکړې،له تانه يې موږ ته ډېر اولادونه راکړي، له تا نه يې موږ ته ډېر قدرت راکړى.

اوکه ديو مسلمان په مقابل کې و هغه ته به يې هم دا ويل.

## دوه ورونه چې يو د دنيا طالب اوبل دا خرت طالب ده

په قرانکريم کې واقعه راځي .دوه ورونه دي له يو پلار څخه ورته اته زره روپۍ پاتې دي ،هريو ته څلور- څلور زره روپۍ ورسيدلې ؛خو يو هغه خپلې روپۍ په دنيالګوي ،په زر روپۍ يې زمکه واخېستله،اوهغه بل زر روپۍ صدقه کړي. بيا هغه دزمکې

دخدمت لپاره په زرو روپو غلامان واخېستل اوهغه بل بیا زر روپۍ صدقه کړي. هغه بیا په زر روپۍ واده وکړ اوهغه بل بیا زر روپۍ صدقه کړي.

هر وار دا وایي چې خدایه پاکه ده په دنیا زمکه واخېستله اوزه داخرت زمکه اخلم.

ده ددنیا غلامان واخېستل زه داخرت غلامان اخلم،ده ددنیاښځه وکړه زه داخرت حوره کوم. بیا چې د ډېر احتیاج په وخت کې دا خپل وروروته ورغي ورته وایې چې څه کومک راسره وکړه نودی یې ملامتوي چې زما اوتا دنیا یوه برابر وه څلور زره دتا وې اوڅلورزره زما وې،بې عقله ټولې دې خیرات کړي اوس راشه اوګوره زما په باغوباندې وګرځه څه چې ماته خدای پاک ﷻ باغونه راکړي،څومره غلامان اوخادمان دي اواخرت نشته که بالفرض دوهم واري ژوندون راشي بیا به هم زما له تانه ډېر وي ځکه چې په دنیا کې مې تر تاښه ساتي نوپه اخرت کې به هم ترتاښه یم.

هغه بل ورته وایې چې ګوره داسې به دې نه ویل ،دابه دې ویل چې په مادخدای پاک ﷻ احسان دی ،کفر اوبغاوت ولې کوي؟ الله تعالی ﷻ په دې قادر دی چې بیرته یې ماته راکړي اوله تانه یې واخلي.

سهار چې کله راپورته شول په باغ یې اور لګېدلی و اوټول سوزلی و.

اوس نو دغه دنیا ده ته دعزت شی معلومېږي چې په دنیا کې
يې ماته ډېر شی راکړی ،که اخرت ته لاړشو نوهلته به هم ترتا زما
ډېر وي.
نودا موجوده انسانانو کې هم داسې خلک شته چې دچا دنیا
ډېرېږي دوی ورځ په ورځ باندې په دوکه کې ولیږي حتی په
ټولوخلکوکې ځان ښه ورته معلومېږي ،ځان دخبري سړی هم بولي
او دافکر ورسره وي چې په ملجس کې کېنم نوباید زه وغږېږم ،زه
ترټولوهوښیار یم،تر ټولو خلکو دې زما عزت وشي،له ټولوخلکو
زه عزتمندیم، مرکه باید زما په خبره فیصله شي، قدرت اوهرڅه
زما په واسطه وشي ځکه زه ترټولوخلکو عزتمند یم. ولې ؟ دنیا
مې ډېره ده .

## حضرت نبي کریمﷺ ته یوشامي دخپلې علاقې صفت کوي

دشام دعلاقې حضرت نبي کریم ﷺ ته یوځوک راغی اودهغې
علاقې صفت یې ورته وکړچې زموږ علاقه ډېره سرسبزه اوسرابه
ده،خدای پاک ﷻ هم مبارکه زمکه ورته ویلې ده، ښه باغونه
اوفصلونه لري.
حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایې چې په داسې سرسبزه علاقه
کې ین نوبیاڅهٔ وربانديې کوي. ده ورته وویل چې بیا ښه ښه
خوراکونه ورنه تیاروو،د ډوډۍ وخت وي ښه خوراکونه ،ښې
مېوې وي ځکه آبادیو.

حضرت نبي کريم ﷺ ورته وویل چې ددغه ښه خوراک نه بیاڅه جوړیږي ؟ دی ورته وایې چې یارسول الله ! ﷺ ته ښه پوهیږي نورچپ شو. حضرت نبي کريم ﷺ ورته وویل چې ددنیاحقیقت دغه شی ده. اصلا ددنیا اصلي حقیقت دغه ګندګي ده.

اوس زموږخلکوته په دغوګندګیوځان عزتمند معلومیږي ،چې څوک ترټولونه ډېر په ګندګیوباندې ککړوي ،ترټولو ځان ورته عزتمند ښکاریږي ، داوجه داده چې شیطان دوکه کړي یو.

## دشیطان ددوکې مثال په محسوساتوکې

د ( الهکم التکاثر ) په تفسیرکې تفسیرعزیزي لیکي چې یوسړی ښه دنیادار ده ،ښه ډېره دنیا اوجایدادلري،په کورکې یې ورته وویل چې داشي نشته، دانشته،دانشته. نودی په دې نیت له کوره راووت چې مثلا بوره واخلم،اوړه واخلم، غوړي به واخلم ،چاې به واخلم دکورنورضروریات به پوره کړم نوښې ډېرې روپۍ یې له ځان سره را واخستي اوس شیطان ،چې دانسان دښمن دی په لارکې کمین ورته نیولی ،په لارکې خلک شراب چکې ،ده ته هم داخیال وروګرځیده ،شیطان یې دوکه کوي چې روپۍ ډېرې دي داخلک یې چکې راشه ته هم یوبوتل وچښه چې څه خوند پکې شته ،نوشراب یې وچښل اوپه ړومبي ځل ډېر زیات اثر کوي نوبیا ولاړشي چیرې په یوګندګي کې ولویږي ،غله راشي وېې ګورې چې داڅوک دی؟ چې راجګ یې کړي اوجیبونه یې وګورې نوهغه ټولې روپۍ ورنه ویسي ،لکه دا نن سبا چې په موټروکې

څه دنیشې شی ورکړي اوټولې روپۍ ورنه واخلي، دغه انسان په هغه ګندګي کې خالي پاتې شي ،اوټوله سرمایه ورنه ویسي، ماذدیګر یې خپل خپلوان راشي اودی په ګندګي کې پورت وي او وایې چې فلانکی خان صاحب خوپه ګندګي کې پورت دی، چې راپورته یې کړي جیبونه یې وګوري ټولې پیسې چا ورنه وړې وي، هیڅ شی ورسره نه وي،هم سرمایه ولاړه شي ، هم په بې عزتي،بې عزته شي اوپه اخرت کې به بې خدای خبرچې څه حال وي .

نودنیا داسې ده چې شیطان موږ ته په کمین کې ناست دی ،دچاچې روپۍ زیاتې شي څوک په شرابواخته کړي، څوک په زنا اخته کړي اوڅوک په نورو بدعملیو لګیا کړي، خو هغه یې بنیادي سرمایه چې ایمان ده، ورختموي، بیا به په مرداره نالي باندې پروت وي، دهلاکت کندې په غاړه به وي په اخرت کې به دسخت مشکل سره مخا مخ کېږي .

نوبنیادي اواصلي هدف وپیژنئ چې مقصود په عباداتوکې په انسانانو باندې دخدای پاک ﷻ له طرف نه امتحان ده، هرانسان دې باید دېته متوجې شي چې زه ځان ورته تیارکړم،که نوي نوپه دې پوه شي چې بل قسم امتحان راباندې را وران دی ، تکلیفونه به راباندې راځي اوکه څوک په راحتو کې و هغه دې نه خوشحالېږي چې زه په خدای پاک ګران یم ،ولې ؟ ځکه چې ماده ره ګټلې ده.

زموږ شناخته دنیادار خلک موږ وینو چې روژه په صحیح طریقه نه نیسي، لمونځ په جمعه نه کوي ،لمونځ په صحیح طریقه

نه کوي، دخدای پاک ﷻ حق نه اداء کوي؛خوچې پوښتنه وکړي
هغه فلانکی مالدار چېرې ده؟ نوکله يې شپږ میاشتي اوکله يې
اووه میاشتې په کراچۍ اولاهورکې تېرکړې وي یا کابل ته تللی
وي،یا دوبۍ او سعودي ته تللی وي اوپه دې ګندګي پسې لګیا
وي.

نودا امتحانات دي په موږباندې ؛نوپه امتحان کې به سړی
زیرک اوسیږي ،هرسوال ته به زیرک وي اوداسې سخت امتحان ده
چې په اینده کې په قیامت کې دا زمکه په سړي شاهدوي ،خپل
اندامونه به په انسان شاهدي ورکوي،ملائکې به په سړي شاهدي
ورکوي،الله تعالی ﷻ په سړي شاهدي وي ،بیا هیڅ شی پټ نه
پاتې کېږي ،ددغې نتیجه به هلته سړی ویني، په انبیا ء کرامو
علیهم السلام رنګ رنګ تکلیفونه راغلي،خودوی پوه و چې
داامتحان ده.

## په حضرت ایوب علیه السلام امتحان اوپه هغې کې کامیابیدل

حضرت ایوب علیه السلام سخته ډېره دنیادرلوده ،ښهٔ
اولادونه، ښه صحت يې درلود؛خو ابلیس لعئین خدای پاکﷻ نه
وایې چې دی ځکه عبادت کوي چې دنیا ډېره لري،ورته خلاص
ده. خدای پاک ﷻ شیطان ته وویل چې ځه په دنیا يې ته مسلط
شه،نوشیطان يې په دنیا مسلط شو نود اوښانو يې چې څومرهٔ
کلي وي په هغو تولو مرض ولګیده اوټول ختم شول،نوشیطان

ورته راغی اوورته ویې ویل چې اوښان دې ټول تبا شول . حضرت ایوب علیه السلام ورته وویل چې الحمد لله ،خدای پاک ﷻ راکړي و هغه واخیستل . حضرت ایوب علیه السلام پوه و چې امتحان دی.

بیا په غواو اومیږو مرض ولګیده هغه ټول ختم شول ،په هروار به شیطان دشپانه په شکل ورته راته اوورته ویل به یې چې غواوې ختمې شوې ،پسونه ختم شول ؛خو ده به ورته وویل چې الحمدلله ا خدای راکړې و ،خدای واخیستل .

بیا ابلیس لعین وایې چې اولاد یې ډېر دی ،په هغو یې زړه تکیا دی ځکه عبادت ته خلاص دی ،دګټې یې خلک شته . الله تعالی ﷻ ورته وویل چې په هغه هم ته مسلط شه . ۱۲یا ۱۴ اولادونه یې په یوه کوټه کې ناست ول ،په هغوټولوکوټه راولویده او ترې لاندې شول اوپه یوځای مړه شول؛ نوشیطان په داسې شکل چې ویني ورنه بهیدلې ورته راغی چې ټول اولادونه دې له کوټې لاندې شول اومړه شول . حضرت ایوب علیه السلام وژړل نوشیطان خوشحاله شو چې کامیاب شوم ،بې صبري خویې شروع کړه ، خوهغه خدای پاک ﷻ ته رجوع کوي چې داپه مابادې دتا امتحان دی ، اوپه مسلمان باندې خودمسلمان زړه سوی دایمان علامه ده.

کله چې شیطان په دې کې هم ناکام شو نووایې چې دی خوښه صحت لري ځکه ښه عبادت کوي ؛نوخدای پاک ﷻ ورته وویل چې په وجود یې هم ته مسلط شه ،نوپه وجود یې هم شیطان مسلط شو

اوخارش پرې ولګيد ،بدن به يې ګراوه- ګراوه ترديې پورې چې غوښه يې ټولې ټوټې شوې ،بدن يې خوړين شو، خو دحضرت ايوب عليه السلام په عبادت کې بياهم دخداى پاک ﷻ کوم تقصير اوفرق را نه غی.

چې کله په دا ټولو امتحاناتو کې ناکام شو حضرت ايوب عليه السلام ته بيرته خداى پاک ﷻ خپله رضا اوکاميابي ، صحت اوځواني ،اولادونه اومالونه ،سره اوسپين ورکړل،او ددنيا اواخرت ټول انعامات يې ورکړل.

نوسړی چې په دې پوه شي چې په دې کې امتحان دی نوبيا انسان ورته متوجې کېږي اوکاميابيږي.

په بدعملو خلکو باندې چې امتحان راشي : مرض اومسکنت راشي ؛نوهغوی ته درک نه لګيږي چې غرض پکې څه و،لوګه اوتنده ورباندې راشي ؛نودرک نه ورته لګيږي چې په دې کې مطلب څه دی ؛خو په نيکانو چې مرض راشي ،نوهغوی ورباندې پوهيږي چې داامتحان دی نو صبر به وکړم نوبيا مې ګناهونه ورباندې ختميږي.

چې روژه ورباندې راشي نوپوهيږي چې عبادت دی ،په دې سره مې ګناهونه ختميږي، اوس نو چې امتحان کې هرې نقطې ته متوجې وي نوبيا دالله تعالى ﷻ انعامات ډېر زيات دي.

نوهره ورځ بيان ته هم ضرورت نشته ،موږ هره ورځ لګيا -لګيا يو.اوخلک يې څوک راسره مني هم نه، صرف دلته چې راشي

نوتول سرونه ښوروي اوښه په شوق ناست وي چې رښتیا موږ
خودلري ځای نه پدغه نیت راغلي یو.
داخبره ځکه کوو چې دا پند به موږځه وخت اخلو:

## از جوانی تا بپیری واز پیری تا به کی

یعنې له ځواني ځخه ترسپین ږیرتوبه اوله سپین ږیرتوبه تر ځه وخت پورې هوښیاریږي ؛خوچې له دې ځایه ولاړ ځ ي بیا هیڅ نه وي ،داسې خلک شته چې تراوسه پورې یې ږیري نه دي پرې ایښې ، بس صرف دا وایې چې درځئ دخلیفه صاحب داسې ښه مجلس وي :داسې ښې ژړاوې،دعا پکې قبلیږي ،پدغه نیت را روان وي چې ګناهونه به مودلته معاف کیږي خوبیاهم دعمل کوشش ډېر کم وي.

داتبلیغان ډېرې اسانه خبري کوي ،دجمعې دلمانځه وروسته دا درود ووایه نوداتیا کالو عبادت درته معاف کیږي بې عمله خلک ددې دردو په ویلو سره داسوچ کوي چې سود اوشراب هم ورباندې معاف کیږي . نوبیا په سود شروع وکړي ځکه چې هلته درود شریف وایې . دېته خونه ګوري چې په دې درود شریف باندې دچا ګناهونه معاف کیږي اوځه وخت ورباندې معاف کیږي

که چیرته یوانسان په اخلاص ،صحیح نیت اوعقیده سره په یومجلس کې کیني اودخدای پاک ﷻ خبرو ته غوږونیسي، دحضرت رسول کریم ﷺ احادیث مبارک واوري اوپه هغه مجلس

کې دالله تعالی ﷻ ذکروشي ؛نو د دوزرو هغو مجلسو چې په هغه کې لهو اولعب ،ټوکې اومسخري شوې وي ، کفاره ګرځي.
اوهمدارنګه دیوشوم شخه ټوله علاقه هم ویرانه کېږي لکه چې وایې:

## ازدست یک شوم سوخت شهر روم

کله داسې وي چې په یومجلس کې ډېرنیک خلک،دخدای پاک ﷻ درحمت مستحق خلک وي خویوداسې بدبخته اوعنادګر کس ناست وي چې صرف هغه ددغې عقیدې په لحاظ چې هغه په علماء ،په مشایخو امتحان وکړي ،حسدا ناست وي اودامجلس واوري اوبیا یې نوروځایوته غلط غلط دپرواپاګندې په غرض نقل کړي :نوخدای پاک ﷻ ددې یوکس له وجې هغه رحمت ودروي . کله دیوه سړي په برکت خدای پاک ټول مجلس معاف کړي ؛خو کله دیوه شوم اوبدبخت اومفسد له لاسه په هغه ټول مجلس دخدای پاک ﷻ قهر اوغضب راځي نوپکار دی چې هرسړی توبه وباسي اوځان ورته مجرم اوتائب ښکاره شي.

## خپل تقصیرات یادول د خدای پاک د رحمت سبب ګرځي

یومجلس کې مو له مُریدانو سره وظیفه وکوله یعنې چشم دیده واقعه درته بیانوم اوهلته یوبل خلیفه صاحب هم موجود ویوملګري تلاوت وکړ اوذکر وشو خوداسې خاص اثریې ونکړ

دهغه مجلس نه وروسته دافکر راسره پیداشو چې داڅه چل و په دې ذکر کې خوهیڅ اثر نه ووخوبیا وروسته راته هغه تقصیر معلوم شو چې په موږ کې دانقصانات دي . قسم په خدای چې په هغه مجلس کې دوهم وار داسې جذب اوژړاوې شروع شوې چې ډېر زر يې په اثر پوه شووچې سړی ورته حیران شي . چې مخکې تلاوت کیده داسې اثر نه و خوچې سړې ته ځان مجرم ولیدل شي چې داخو په ماکې جرم ده چې پداسې پاک مجلس کې ناست یم اواثر نه کوي.

ډېر وارې ماداسې مجلسونه لیدلې دي چې ډېر ملګري ژاړي اوډېر بیا خاندي چې دااوس ژاړي ولې؟ اوس دغه ته يې نه ده پام چې دازما زړه دخه شی ده، دالله تعالی ﷻ دنامه په یادیدلو دمسلمان په زړه کې خوف اوویره پیداکېږي ،قران کریم بیانېږي خوف نه پیداکېږي ،سړی باید پوه شي چې زه خراب یم، دخپل عمل نه چې په اخلاص څوک تائب شي په هغه مجلس کې خدای پاک ﷻ اثر پیداکوي.

نوالله دې زموږ اوتاسې داروژه دمغفرت سبب وګرځوي اوالله تعالی دې دتقوی سبب وګرځوي. چې خدای پاک ﷻ ویلې چې ددغه له پاره مې روژه فرض ده چې تاسې پرهیزګاره شي .الله تعالی مودې پرهیزګاره کړي اوپرهیزګاري دامعنا چې سړی دداسې ځایونه ځان وساتې چې دده دبدن له پاره تاوان وي اووربادې سوځي اوهلاکېږي ،ګناهونه زموږ دبدن لپاره تاوان دي چې داسې عمل له موږ څخه ونه شي چې بیا په موږبادې تبه

زیرې ته ورسیږي یاتبه ینه راخرابه اوخوړینه کړي . داسې ګناهونه رانه ونه شي چې داکړي اعمال مو رانه (هباء منثورا) ختم شي اوکه دغسې توجه وه خدای پاک ﷻ خو رحیم ذات ده یونه په یو وخت کې خوبه خدای پاک ﷻ دیومسلمان توبه قبوله کړي ،یوه دعا ،یوه ژړا خوبه خدای پاک ﷻ قبوله کړي دهغې په برکت به داخرت زندګي دسرې برابریږي بیا به دغه بدنونه انشاء الله دجنهم له اور اوهلاکت نه بچ شي اوالله تعالی ﷻ مودې دهلاکت نه وساتې .

واخردعوانا ان الحمد لله رب العالمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا

ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

  

# (۵۵) مجلس

## د آل نسبي او حسبي سره تعلق او محبت

﴿ قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا إِلَّا ٱلۡمَوَدَّةَ فِي ٱلۡقُرۡبَىٰ ﴾

صدق الله العظيم

حضرت نبي كريم ﷺ په ټوله زندګي کې، په خاصه توګه د مکې معظمې په زندګي کې ددين په اشاعت کې بې انتها زيات تکليفونه تير کړې .بيا ورپسې دده صحابه کرامو (رضی الله تعالی عنهم اجمعين) ته دکفارو له طرفه نه قسم - قسم تکليفونه ددغه دين په سبب رسيدل .

يو ځل کفار را جمعه کيږي او حضرت نبي کريم ﷺ ته وړانديز کوي چې ددې خلکو ،له پخواني دين څخه په اړولو کې ،که دتا دامطلب وي چې دنيا لاس ته راوړې ؛نوموږ به دومره دنيا درکړو چې دتا اودتا داولاد اولمسيانو به هم بس شي خودانوی دعوت پريږده ،دپلارنيکه له دين څخه خلک مه منحرف کوه .

اوکه دتا نيت داوي چې ته زموږ مشر شي نوبيا به موږ ټول قوم او ټول قريش تا خپل مشر،امير او سردار مقرر کړو اوټول به دتا اطاعت کوو ؛خود اخبره پريږده چې ته دټولو بوتانو خلاف کوي اوخلک ديوه خدای طرف ته رابولي .

اوکه دادې مطلب وې چې واده غواړي نوپه ټولو قریشو کې په خپله خوښه باندې لس جنکۍ خوښې کړه ټولې به تاته ،بې له مهر واده کړو ؛خودا نوي دعوه پرېږده .

یعنې ددوی خیال داو چې حضرت نبي کریم ﷺ چې دټولو دینو خلاف یودین ته خلک رادعوت کوي ،چې هغه داسلام دین دی ،دیو الله تعالی طرف ته خلک بولي ؛نودده دنیوي غرضونه دي ،دپروخت کې سیاستدان دخپل مبارزې په وخت کې اودسیاست په میدان کې خلکوته دیوشي اوبل شي طمعې ورکوي ؛خو مقصد اواهداف یې خپله کامیابي وي خوخلکو ته په ذهن کې داورکوي چې زه خو دتاسو لپاره لګیا یم ،خوخلک په دې باندې پوهیږي چې ته خپل شخصي غرض لري ؛نومشرکینو هم په حضرت نبي کریم ﷺ باندې داګمان کړی و چې دی هم خپل غرضونه لري چې دانوي کلمه یې شروع کړې ده .

دحضرت عیسی علیه السلام د پیدائښت (۵۷۰) یا (۶۰۰) کاله تیرشوې وي اوله هغه نه وروسته بل پیغمبر نه و راغلی ،په دې موده کې په خلکو کې په شرک اوکفرکې تیرو ، عقیده یې هم دشرک اوکفر وه ، دومره جاهلیت و اودومره وحشت و چې خلکو به خپلې ژوندۍ لورانې په خارو کې له دې وجې خښولې چې سبابه ددغو ډوډۍ بندوبست څرنګه کوم اویازما لوربه غټیږي اوبیا به یې بل په نکاح کوي ؛نودومره دجهل دوره وه .

دومره جاهیلت و چې خلکو به له بیت الله شریفې نه لوڅ لغړ طوافونه کول ،داسې رسوایي چې یوې ښځې به له لسو کسانو

سره زنا کوله اوچې اولاد به یې پیداشو نوقافیه شناس به یې راوست چې دغه بچی په دې لبسو نفرو کې کوم یوکس ته شوی دی ؟ کله به چې هغه قافیه شناس ورته وویل چې ددې ماشوم رنګ دې کس ته ورته والی لري بس هغه ماشوم به دهغه کس واوهغه ښځه به دهغه بلل کیدله ،ترهغه وخت پورې به دغه لس اویازیات اوکم تولو له دغې یوې ښځې سره بدفعلي کوله.

نو حضرت نبي کریم ﷺ د داسې وحشت په دورکې یوه دین ته بلنه اودعوت شروع کړچې دیوه الله تعالی وحدانیت قبول کړئ، دهغه دین قبول کړئ ؛نو طبعا چې دومره جهالت تیر شوی وي نودهغوی خلکو په خبره سر نه خلاصیږي ، نو ده ته یې وویل چې که دنیوي څه غرض لري،هغه به دی پوره کړو ،سردار به دې مقررکړو، مال اودولت به درکړو.

حضرت رسول الله ﷺ ورته وایې چې نه زما پدغه دعوه کې نقط ــ فقط دحق دین مطلب ده چې کلمه د﴿ لا اله الا الله ﴾ ده ، له تاسو نه نور اجراومزدوري نه غوارم.

﴿قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا إِلَّا ٱلۡمَوَدَّةَ فِي ٱلۡقُرۡبَىٰ ﴾

نوزه دتاسې نه اجرت اوتنخوا په خپله پیغمبري نه غوارم صرف ــ صرف دتاسې نه محبت په خپلوي کې غوارم.

مفسرین ددې دوه قسمه تشریح کوي یا دا چې زما دتاسې سره چې کومه خپلوي ده دقریشو چې څومره شاخونه و حضرت نبي کریم ﷺ دهغو سره دخپلوي تعلق درلود ،یاد خسرګنی په نسبت

باندې ،یاد ماماتوب په نسبت باندې، یاد خوریي توب په نسبت باندې ،یاد تربګلوي اوعزیزي په نسبت باندې ؛په دې ټولو نسبتوسره زه صله رحمي دخپلوي درنه غوارم ،چې زه موخپل یم ،دخپلوي حق درباندې لرم، زما ددیني خدمت مانع مه واقع کېږي ، که نور ښه مو نه رارسیږي زما مقابله خومه کوئ.

ګورئ ستاسو زوی - وروړ اوقریب یم ،لکه یو وخت کې ابوجهل اوپنځویشت نفره مشران راټول شوهلته یې دحضرت نبي کریم ﷺ تره ابوطالب ته یې وویل چې وراره ته دې ووایه چې ددغه دین نه واوړه اوموږ دهغه خپل دین نه مه اړوه که نه وي نو بیا داوکړه چې ته خپل خدای ته خلک دعوت کوه اوموږ به خپل خدای ته ،په موږ کار مه لره .

حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایې چې زه تاسې ته یوه خبره کوم که هغه راسره ومنئ دټولو عربو به مشران شئ اودټولو عجمو به مالکان شئ اوهغه داکلمه ده چې ﴿ لا اله الا الله ﴾، دوی ورنه روان شو نوحضرت نبي کریم ﷺ ورته وایې چې زه دخپلوي لحاظ درنه غوارم چې دتاسې سره زما خپلوي ده نووصل رحمي راسره کوئ زما مانع مه واقع کېږي .

دوهمه تشریح یې مفسرین داکوئ چې زه دتاسې نه خپل شخصي غرض ،شخصي هدف نه غوارم دتاسې نه محبت زما داهل سره غوارم چې زما داهل سره تاسې محبت کوئ .

## دحضرت نبي كريم ﷺ اهـل (كورنى)

دحضرت نبي كريم ﷺ دوه قسمه اهل دي : يو دنسب په لحاظ اهل ده، چې سيدان مباركين دي ،اولاد دبني هاشم اوبني عبدالمطلب دي ؛ نوددغوپه هكله محبت درنه غوارم ،زما له اهل بيتو سره محبت كوئ.

يا له اهل نه دانسبي اهل مراد ده.

اوپه اهل بيت دحضرت نبي كريم ﷺ باندې سړي ته څۀ چې وغواړي هغه پيدا كيږي ،دهغو چې هره غوښتنه ومنې دا داخرت ګټه ده.

نوزما دنسب په باره كې له تاسې نه محبت غوارم اودا ولې غواړي ؟

منشاء دمحبت به څه وي ؟ ځكه چې د حضرت رسول الله ﷺ خپل دي ؛نوچې په دې نيت چې دوى دنبي كريم ﷺ اولاد دي ؛نودا په حقيقت كې دحضرت نبي كريم ﷺ سره محبت ده ،اوپه دې محبت بيا دخداى پاک ﷻ رضا پيداكيږي ،دجنت انعامات ورته پيداكيږي.

## د ساداتو مبارکانو په قدرکې په بې پروایۍ سره انسان تباه کیږي

په بخاري شریف کې یو حدیث راغلی چې یوه کونډه سیده دیو مسلمان تجار کورته ورغله ،ورته ویې ویل چې زه سیده یم،دحضرت نبي کریم ﷺ اولاد یم . خوبشخینه مسکینه یم ،خاوند مې وفات شوی ،اولاد مې کمزوری ده دنفقې څه بندبست نشې کولای ،ته مسلمان یي،داسلام په خاطر درسول الله ﷺ په تاباندې حق ده ،که څه راکړې ؟

هغه مسلمان تجار ورته وویل چې ته څه دلیل لرې چې ته سیده یي؟لکه اوس موږ اوتاسې له سیدانو څخه دشجرې پوښتنه کوو .

دې مبارکې ورته وویل چې زه خپله اقرار کوم چې زه سیده یم نور څه غواړې ؟ هغه ورته وویل چې داسې سیدان ډېر دي ،په داسې سیدانوپسې زه نشم راسیدلای.

داسیده مبارکه سخته مایوسه شوه او دمایوسیت له وجې خپل کور ته هم بیرته نشوای رسیدلی ځکه چې ناوخته شو شپه پرې راغله ؛نوپه هغه ځای کې دیو یهودي کافر کورته ورغله اوهغه ته یې هم دخپل مسکنت اظهار وکړ .هغه کومک ورسره وکړ.

دشپې دغه مسلمان تجار خوب ویني چې دقیامت ورځ ده حضرت نبي کریم ﷺ ناست ده دخلکو لپاره شفاعتونه کوي ،په

جنت کې یوه بهترینه ښه بنګله ولاړه ده ،دامسلمان تجار ورته وایې چې یارسول الله ! دابنګله دچاده ؟ حضرت نبي کریم ﷺ ورته وویل چې (لرجل مسلم) دیومسلمان سړي لپاره ده ،دی ورته وایې چې خوزه هم مسلمان یم داماته راکړه. حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایې چې څه دلیل لري چې ته مسلمان یې ؟

مسلمان تجار ورته وایې چې زه اقرار کوم چې زه مسلمان یم. رسول الله ﷺ ورته وایې چې اقرار دلیل وای نوهغه زما لور زما نسب ،چې تاته درغلې وه هغې درته وویل چې زه سیده یم تاولې دهغې خبره نه منله ؟

هغه یهودي هم دشپې دغه واقعه په خوب باندې ویني اوبیا خپله کورنۍ ټوله راپورته کوي اودسونه کوي کلمه وایې اوپه اسلام مشرف کېږي.

سهار دغه مسلمان تجار ورځي چې بیګاه دتاسې کره خوځوک میلمانه نه و راغلي؟ هغه یهودي ورته وویل چې یوه مسکینه عاجزه ښځه راغلې وه.

تجار ورته وویل چې هغې ته ووایې چې صرف تر دروازې یې راوباسه دومره زره روپۍ به درکړم. هغه ورته وویل چې زه دجنت بنګله پدغو پیسو نه خرڅوم

نودحضرت رسول الله ﷺ داهل بیتو په احترام اومحبت باندې سړي ته دجنت بنګلې پیداکېږي ،دجنت انعامات اودحضرت رسول الله ﷺ شفاعت ورته پیدا کېږي.

حضرت نبي كريم ﷺ حسنين مبارکين خپل لمسيان په غيږ کې نيسي اووايې چې اى خدايه ! زه ددوى سره محبت لرم ،ته دهغوخلکوسره محبت وکړي چې څوک دحسنينو سره محبت کوي

حضرت نبي كريم ﷺ وايې چې زما له اهل سره محبت دايمان برخه ده، څوک چې زما داهل سره محبت لري دادايمان برخه ده اوڅوک چې عداوت ورسره لري داد کفر نه برخه ده .
نوحضرت نبي كريم ﷺ ورته وايې چې زه دخپلوانو په باب کې دتاسې نه محبت غواړم چې تاسې زما دکورنۍ سره محبت کوي ،زما له نسب سره محبت کوي.

## داهل له دوهم تفسير نه څوک مراد دي ؟

داهل دوهم تفسير داده چې اهل نه اولياء مراد دي .دحضرت نبي كريم ﷺ له اولاد حسبي نه علماء رباني ،علماء عاملين چې په شريعت باندې مستقيم وي دغوته علماء رباني هم ويل کېږي ،دغوته اولياءکرام هم ويل کېږي . نوزه ددغوپه باب کې له تاسې نه محبت غواړم چې ددغو سره محبت کوي .
ځکه چې حضرت نبي كريم ﷺ وايې چې څوک دعلماء سره محبت کوي دازما سره محبت ده اوڅوک چې زما سره محبت کوي دا له الله تعالى ﷻ سره محبت ده اوڅوک چې له الله تعالى ﷻ سره محبت کوي دهغو لپاره جنت واجب ده اوڅوک چې دعلماء سره

دښمني كوي ،دعلماء نه نفرت كوي دا زما سره دښمني ده اوڅوک
چې زما سره دښمني كوي دا دالله تعالى ﷻ سره دښمني ده اوڅوک
چې دالله تعالى ﷻ سره دښمني لري دهغوى لپاره جهنم واجب ده.

لوى اومتعال خداى ﷻ فرمايي: ﴿ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ﴾

اول به دالله تعالى ﷻ مني اوبيا به دحضرت رسول الله ﷺ مني اوبيا داولوالامر مني. مفسرين داقول مختاره كوي چې له اولى الامر څخه دهر وخت علماء ربانيين ،حقيقي علماء كرام مراد دي ،نوددغو اطاعت به كوي ځكه چې عالم څه راته وايې له خپل ځان څخه يې نه وايي،دقوميت په لحاظ يې نه راته وايې بلكې په دې لحاظ يې راته وايې چې درسول الله ﷺ نائب ده ، دحضرت رسول الله ﷺ خليفه ده دهغه وارث دى ،دهغه دين ماته رارسوي.

اوس دلته علماء كرام ليكي چې ترهغه پورې انسان كامل مؤمن نشي كيدلاى ترڅوچې له الله تعالى ﷻ سره ،له هرڅه نه دده محبت زيات شوى نه وي.

دوه قسمه احاديث راغلي دي په يوه حديث كې راغلي چې رسول الله ﷺ فرمايي: لايؤمن احدكم حتى اكون احب اليه من والده وولده والناس اجمعين ) يوكس ترهغه پورې كامل مؤمن نه شي كيدلاى ترڅو چې زه ده ته له خپل مور اوپلار، اولاد اونورتولوخلكو نه ،زيات محبوب شوى نه يم.

اوپه بل حدیث کې راغلي چې : من كان الله ورسوله احب اليه مماسواهما ) یعنې مؤمن ترهغه پورې کامل مؤمن نه شي کیدلای ترڅوچې ده ته له خپل ځان څخه خدای اورسول زیات محبوب شوي نه يي.

نو له خپل ځان څخه ،له اولاد څخه ،له مور اوپلار څخه بلکې له ټول مخلوقاتوڅخه له الله تعالی اورسول الله ﷺ سره زیاته مینه ولري ، یعنې دځان به نه مني دالله تعالی ﷻ به مني،داولاد به نه مني دالله تعالی به مني،دموراوپلاربه نه مني دالله تعالی ﷻ به مني.

خو لکن مفسرین کرام لیکي چې دحضرت نبي کریم ﷺ سره کامل محبت به هلته پیداکېږي چې دده له وارث سره کامل محبت پیداشي، ترڅو چې دده له جانشین سره کامل محبت نه وي پیداشوی نودنبي کریم ﷺ محبت پیداشي. همدارنګه له حضرت نبي کریم ﷺ سره کامل محبت ترهغه نه پیداکېږي ترڅو چې له الله تعالی ﷻ سره يې کامل محبت نه وي .

دالار ده یوبل ته . موږ حضرت نبي کریم ﷺ نه لیدلی،نه مودهغه معجزې لیدلي،نه مو دهغه دوحې دنزول حالات لیدلي ؛خوداچې دحضرت نبي کریم ﷺ عظمت ،دهغه لويي ،دهغه لوی مقام چې ترالله تعالی ﷻ نه را لاندې په مخلوقات کې بل د داسې لويې مرتبې څوک نشته ، داموږ ته چاراپيژندلی؟ علماء کرامو راپيژندلی ،نواول به دغه خپل استاذ ،خپل مرشد چې تاته ددين ښوونه کوي ،اول به ته دهغه په نقش قدم باندې راونيږې، خپل

خواهشات به پرېږدي ،دده په نقش قدم به روانېږي داوسيله ده نودحضرت نبي کريم ﷺ سره علاقه،تعلق اولار پيداشوه ځکه عالم خودنبي کريم ﷺ لار درته ښيي.

حضرت امام غزالي قدس الله سره په احياء العلوم کې ليکلي چې ماته يووخت کې داسې سوچ پيداشو چې هرشي لره يوحقيقت شته دغه حقيقت دشي چې سړي ته معلوم شي بيا تغيز اوتبدل په هغه شي کې نه راځي مثلا دامته ده له سمنتو اوخښتوڅخه جوړه شوې ده ،ددغې خپل حقيقت ده . داپنکی ده دغې هم خپل حقيقت ده په دوغوشيانو که هرڅومره هواوې راشي ،بارانونه پرې او ورېږي نوپه تيګه نه بدلېږي.

نوامام غزالي صاحب وايې چې علم هم يوحقيقت لري ،دعلم حقيقت مې چې وکوت نوهغه کامل اوپوخ يقين ته ويل کېږي ،چې داسې ديقين پيداشي چې دهغه په خلاف کې هرڅومره خبرې درته وشي دتاپه يقين کې هيڅ تردد اوشک نه پيداکېږي ،تردې پورې چې خوارق درته وښيي چې په هوا والوت اوتاته ووايې چې داپنکی نه دی ، نودتاپه يقين کې بايد شي رانه شي.

خوامام غزالي قدس الله سره وايې چې ماهرڅومره کتابونه وکتل زما په علم کې دغومره مقام نه و،ځکه ډېر وخت يوسړی ښه ملاوي داملاخپل پنځه يالس کتابونه کتلی وي ،مطالعه يې کړي وي اوپه خپله مطالعه يې اعتماد اويقين راشي لکن چې ترڅانه څخه بل ملا اوعالم ووينې اودلائل ورته ووايې نوبيرته يې په خپله خبره کې شک پيداشي ،ځکه چې دعلم حقيقت ته نه وي

رسيدلى ، نوڅکه دبل دليل يې واوريده نوپه خپله خبره کې تردد ورته پيداشو .

علم ډېر مشکل کار دى ،څکه چې يوه مسئله به وي، خلک همدغه مسئله له يوملا څخه پوښتنه وکړي نوهغه ملا يوخبره ورته ووايې اوچې کله دهمدې مسئلې له بل ملانه پوښتنه وکړي نوهغه بل څه ورته ووايې ؛څکه چې يوعالم په دې مسئله کې يونظر لري اوپه خپل کتاب کې يې ليکلي وي اوبل عالم بل نظر لري اوپه کتاب کې ليکلي وي ،مسئله يوملاهم له خپل ځان څخه نه کوي ،کتاب، گوري بيا مسئله بيانوي ؛ نواوس به په مفتى به قول پسې گرځي نومشکل کار شو .

نوامام غزالي قدس الله سره وايې چې ماچې خپل علم ته وکتل داسې حقيقت ته نه ورسيدلى،نوکوشش مې شروع کړ چې داخپل علم داسې يقيني شي چې هرڅومره خوارق اودلائل ورته ښکاره شي شک اوتردد نشي پکې راتلاى .

صرف ،نحو اوداسې دانور مروج علوم مې ټول مطالعه کړل ؛خوداسې يقين مې پکې پيدانکړ ؛نواخير مې داولياء کرامو کتابونه مطالعه کړل ،ددوى په کتابونوکې يوڅه تسکين راته پيداشو ؛خوپه يواځې کتلوسره خوداحقيقت نه شي ترلاسه کيدلاى نودحقيقي علماء کرامو،اولياء عظامو سره مې تعلق پيداکړ چې ترڅو هغه حقيقت چې په دوى کې موجود ده ،په ماکې هم پيداشي .

دهغه وخت داولیاء کرامو سلسلې داسې نه وې لکه دا نن سبا یې چې موږ ګورو ، اصلي پیران ډېر کم دي ، دا خانقاوې هم داسې نه وي لکه دانن سبا چې دي ،دهغه وخت خانقاوې داسې وي لکه دادنن سبا مدرسې چې طالبان درس پکې وایي ،هلته به مریدان په کې اوسیدل اوذکر،اذکار اووظائف به یې پکې کول؛دټولو دفقراومسکنت په حالت کې و،جامې به یې پیوند- پیوندوي ،خوراکونه به یې ډېرکم و،یعنې دملنګي ژوندو،مقصد داچې ددنیا له هرشي نه تیروو.

امام غزالي قدس الله سره وایې چې مادغې خبرې ته نیت وکړ،نفس مې نه راسره منله ،نفس اوشیطان دافکر ته راواچوله چې ښه ملاً یې،ښه کتابونه جوړوې،ښه درس کوې، ددین خدمت کوې،ته چې اوس ملنګي غوره کړې داټول خدمتونه درنه پاتې کېږي ؛ نوبیرته پیښمانه شوم چې رښتیا خوددین خدمت پاتې کېږي . شیطان هرسړي ته په خپل لباس کې ورځي چې درس ،تدریس ،تصنیف اوکتابونه درنه پاتې کېږي.

خوهلته ددې خبرې شوق و،څه وخت وروسته مې بیا قصد وکړبیا نفس داخبره زړه ته راواچوله چې دلته خوته شهرت لرې ،ددین خدمت کوې ،خلک درته راځي دیوې مسئلې پوښتنه درنه کوي ،که ملنګې غوره کړې ،ولاړشي چیرته په خانقاه کې واړوې یوغریب طالب شي ،غریب ملنګ شي اودرویش شې نوبیا ددین خدمت درنه پاتې کېږي اوداشهرت به دې ختم شي؛نوشیطان بیا مقابله کوله.

دريم واري مې بيا نيت وکړ؛نوبيا نفس دازړه ته راواچوله چې اوس دې ښه کار جوړده،خلک دې عزت کوي،شکرانې پيداکېږي ،درس اوتدريس باندې تنخوا پيداکېږي ،خلک کومکونه درسره کوي اوچې ملنګي غوره کړې ؛نوداټول هرڅه ختم شو ،دعيال نفقه هم فرض ده ،لکه دانن سبا چې زموږپه عواموکې مشهوره ده دعيال نفقه فرض ده،لس کروړه روپۍ لري،لمونځ هم فرض ده خولمونځ بلکل تکی نه کوي،دعيال نفقه فرض ده !!! .

نوهميشه داسوچ اوفکر راسره و اخير داعصابو کمزوري راته پيداشو ،دوخت حکيمانو دافيصله وکړه چې ددغه سړي عصاب ختم دي ،ددغه علاج نه کېږي . دغې اندازې ته ورسيدم ؛

خوايې چې له شپږو مياشتو وروسته خدای پاک ﷻ مې زړه ته الهام وکړ،چې داټول هرڅه دې پاته وي ؛خو يوار خپله ځان اصلاح کړه ،چې علم وي اصلاح نوي ،شهرت وي اصلاح نوي؛نوداخوټول ددنياشيان شول اخرت خوپاته شو !

نوکور مې پرېښود،وطن اوشاګردان ،درس اوتدريس هرڅه مې پرېښودل اوشام شريف ته ولاړم ،هلته مې ددمشق په جومات کې ځان ته اعتکاف ( چهله ) اوخلوت خانه مې غوره کړه ،په دې خلوت خانه کې مې چې دکومو اولياء سره تعلق جوړکړ اذکارمې شروع کړل،څه اسرار راته پيداشول، دحج وخت رانزدې شوزړه مې وغوښتل چې دحرمينو شريفينو زيارت وکړم ،حج ته ولاړم اودحضرت نبي کريم ﷺ په جومات کې مې خلوت غوره کړ.

دی وایې چې په دې ځای کې داسې اسرار راته پیداشول چې دژبې دویلو نه دي ،دقلم دلیکلو نه دي. صرف دومره به ووایم چې که ددنیا ټول هوښیاران جمعه شي ،ټول عاقلان جمعه شي ،ټول پروفیسران جمعه شي اودا ووایې چې موږ دې داولیاء کرامو نه ښۀ اخلاق پیدا کړو ؛نو بلکل یې نه شي پیداکولای.

اوس ولې یې نه شي پیداکولای؟ ځکه چې داولیاء کرامو اخلاق دحضرت نبي کریم ﷺ له سینې مبارکې نه اخیستل شوي دي ،ځکه چې یو ولي هلته کاملیږي چې دحضرت نبي کریم ﷺ په سنتو روان شي ،دهغه دشریعت پابند وي اودحضرت نبي کریم ﷺ په صفاتو کې خدای پاک ﷻ ویلې دي چې :﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾ ته د ډېرو لویو اخلاقو څښتن یې ، نوچې خدای پاک ﷻ لوی ورته ویلې نوبنده یې دصفت نه عاجز ده ،چې خدای پاک ﷻ ورته ویلې دي چې ته دغټو صفاتو څښتن یې نوموږ به یې بیا څرنګه بیان وکړو.

له دغې وجې نه علماء کرام دحضرت نبي کریم ﷺ صفات چې بیانوي داوایې:

**لایمکن الثناء کما کان حقه**

**بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر**

یعنې دالله تعالی ﷻ نه را لاندې لنډه خبره داده چې ته لوی یې.

دمعراج په شپه چې حضرت نبي کریم ﷺ لامکان طرف ته روان شو، سدرة المنتهی ته چې ورسیده حضرت جبرائل علیه السلام ورنه پاتې شو،حضرت نبي کریم ﷺ حضرت جبرائیل علیه السلام

ولې دې ملګرتيا پريښودله؟ هغه ورته
ته وايې چې راځه راپسې، ولې دې ملګرتيا پريښودله؟ هغه ورته
وويل چې که ددغه مقام نه يو ويښته اندازه پورته وښوريدم تول
وجود به مې وسوځي . دالله تعالى دانوارو اوزما دوجود ترمنځ
(۷۰) حجابه دي، نور که ورنږدې شوم وبه مې سوځي.

همدارنګه اسرافيل عليه السلام چې دعرش عظيم نه رالاندې
ولاړ ده، هغه وايې چې زما اودخداوندمتعال ترمنځ (۷۰) حجابه
دي، نور که ليږ وړاندې شوم وبه مې سوځي.

لکن حضرت نبي کريم ﷺ پورته شو ﴿ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ ﴾
الله ته دومره نږدې شو لکه دغيشې دوه طرفه، بلکې تردې هم
ورنږدې شو.

نوچې خبره بيرته سرته بوزو حضرت نبي کريم ﷺ فرمايي چې
زما له اولياء سره محبت کوئ، ځکه ددوی اخلاق دحضرت نبي
کريم ﷺ نه اخيستل شوي دي ، ددوی په محبت دالله تعالى ﷻ
اودرسول الله ﷺ په طرف چې لار خلاصه شوه (تخلق باخلاق الله)
نبي کريم ﷺ دالله تعالى ﷻ په اخلاقو متصف ده . په قرانکريم کې
الله تعالى ﷻ حضرت نبي کريم ﷺ ته فرمايي : ﴿ بِٱلْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ
رَّحِيمٌ ﴾ په مسلمانان مهربان اورحيم ده . نودده په عشق اومحبت
کې دالله تعالى ﷻ عشق اومحبت پيداکيږي؛ نو ( فنا فى الشيخ )
چې اول خپل شيخ ترخپل مور اوپلار اولاد بلکې ترهرشي محبوب
نه شي ترهغه ﴿ فنا فى الله ﴾ نه درته پيداکيږي ﴿ فنا فى الرسول ﴾
چې نه وي پيدا ﴿ فنا فى الله ﴾ نه پيداکيږي .

## اصلي مطلب له اولیاوو سره کامل محبت ده

اصلي مطلب زما داو چې زموږ دکامیابي لار داده چې ددغوخلکو سره کامل محبت وکړو ،ځکه چې دوی د حضرت نبي کریم ﷺ اودالله تعالی ﷻ خبرې موږ ته کوي هغه څوک چې دالله تعالی ﷻ خبرې موږ ته کوي ددنیا محبتونه ټول په دنیا بناء دي . دچاسره دخپلوي اودوستي لحاظ وي ،دچاسره دورکړي اوراکړي لحاظ وي چې دفلانکي له ماسره کومک کوي ،دچاسره دیوبل څهٔ نفسي خواهشاتو تعلق وي خودعلماء کرامو سره تعلق په دین بناء وي ځکه غټې مقام لري،ملا چاته روپۍ یاکورسۍ یا ددنیا عزت نه ورکوي نوچې نه یې ورکوي اوبیاهم څوک دیوحقیقي عالم سره محبت ساتې نومنشاء به یې یواځې اویواځې دین وي نوچې ته دعلماء و سره ددین په لحاظ محبت کوې الله تعالی ﷻ بیا ډېر غیرتي ذات ده ،دومره غیرتي ده چې په حدیث شریف کې راځي چې څوک زما له اولیاء کرامو سره مخالفت کوي نو ددغه سړي سره زما دجنګ اعلان ده ( بارزني محاربة ) دغه سړي دې زما جنګ ته ځان تیارکړي اوبعضې الفاظ داسې راځي چې : ( من عاد لی ولیاً فقد اذنته بالحرب ) یعنې څوک زما له دوست سره مخالفت کوي دهغه سره زما دجنګ اعلان ده .

اوتفسیر مظهري کې لیکلي دي چې خدای پاک ﷻ وایې څوک چې زما له اولیاء سره مخالفت کوي دغه زما جنګ ته ځان تیارکړ

تردې پورې چې په دغه حدیث شریف کې الله تعالی ﷻ وایې څوک چې زما دعلماء ،زما داولیاء سره مخالفت کوي زه داسې ورته په غضب کېږم لکه زمری چې په غضب کېږي.

اوس نو چې الله تعالی ﷻ دخپلو دوستانو په خفګان داسې خفه کېږي نودهغه په خپلوي اومحبت بیا دغسې خوشحالېږي ،دعلماء سره چې څوک ددین په خاطر محبت کوي نودا په حقیقت کې له الله تعالی ﷻ سره محبت ده . درسول الله ﷺ ددین په خاطر محبت نودا په حقیقت کې له الله تعالی ﷻ سره محبت ده .

دمسلم شریف په شرح کې امام نووي لیکي چې په کوم مجلس کې دالله تعالی ﷻ ددوستانو نوم واخیستل شي نو خدای پاک ﷻ په هغه مجلس کې رحمتونه نازلوي .

په بخاري شریف کې دبدرینوصحابه په هکله چې موږ یې مخکې بیان وکړچې ددوی د نوموله اخیستلو وروسته خدای پاک ﷻ دعا قبلوي څکه چې دالله تعالی دوستان دې وسیله کړل دهغه دنوم په یادولو الله تعالی ﷻ خوشحالیږي نوچې دالله تعالی ﷻ رحمت متوجې شو نوبیادمسلمانانو حاجتونه ورپوره کوي .

دقیامت په ورځ به دوی ته دخدای پاک ﷻ له طرف نه اعلان کېږي چې چا دتاسې سره محبت کړی وي په هره نوعه باندې نودهغو تولوشفاعت وکړئ اوجنت ته یې درسره بوزئ ، خلک به په خان پورې حیران وي اودغو دخدای دوستانوته به دالله تعالی ﷻ له طرف نه اعلان کېږي چې ای علماوو ! ای طلباوو! ای مجاهدینو! ای مخلصینومسلمانانواچې دتاسوسره چامحبت کړی

وي، معاونت یې کړی وي؛ نونن دهغوسره تاسوښهٔ وکړئ، هغو دنیاوي ښه درسره کړی نن تاسوپه اخرت کې ښه ورسره وکړئ له ځان سره یې جنت ته بوزئ.

نوځومره موچې وس کېږي له علماء سره تعلق جوړوئ ،دهغو سره محبت کوي اودغه ته مو چې خیال نشي چې دوی په دنیاکې ددنیا په لحاظ مسکینان دي ،نوتاسې ته ځان غټ ولیدل شي اودوی ته دحقارت په نظر وګورئ ،ډیر داسې عوام شته چې ملا ته تنخوا ورکوي اودتنخوا احسان په ده باروي اوداسې معامله ورسره کوي لکه دمزدور سره چې اوس خو تنخوا درکوم څه خوشې خونه یې .تردې پورې چې داسې جوماتونه شته چې دجومات خدمت یې په ملا باندې لازم کړی وي . مزدور یې ورنه جوړ کړی وي ،ولې خو دمیاشتې (۱۰۰۰) روپۍ ورکوي اوبیا یې ځان لوی پرې بولي، دا خوبیا بله خبره ده چې خدای پاک ❋ دعلماء نفقه په خلکو کې تقسیم کړی ،که نه وي قسم ده که پدغه زر روپۍ په دې قیمتې کې دکوټې صفایي هم څوک وکړي.

ددنیا هغه ادنی نوکري تاسې له (۴۰۰۰) څلورزرو نه کمه لیدلې ده ؟ علماء دسهار نه تربیګاه پورې ټول وخت درسره محصور وي خوپه پنځه سوه (۵۰۰) اودولس سوه الله تعالی ❋ دوی ته قناعت ورکړی دا دالله تعالی رحم ده چې قناعت یې ورکړې ، که دعالم هم داسې خرص وای چې ته لوډر اخلې نوزه یې ولې نه اخلم؟ ته تراکتور اخلې زه یې ولې نه اخلم؟ ته دوکان جوړوې نوزه

واى نودا دين به يې ولې نه جوړوم؟ دهغه هم پڼغه طرف حرص پاته نه وو؟

خو ددې فقر برکت ده چې دوى خداى پاک دوى يې فقيران کړي دي تاسې ته يې محتاج کړي دي خو ددين خدمت خداى پاک ﷻ روان ساتلى ده.

دکوم ملا چې کار جوړ وي هغه بيا درس اوامامت کوي ؟ نه يې کوي ، څکه مخلص خلک کم دي . هو! کم علماء به داسې وي چې خداى پاک ﷻ خپله هم ښه ورکړي وي او ددين خدمت ته ولاړ وي . نوخواهشات په دوى غالب نه وي ،هغه خاص دخداى پاک ﷻ درضا له پاره ددين خدمت ته ولاړ وي ، کولاى شي په بله لار کې ښه ډيره دنيا وګټي خودنيا يې مطلوب نه وي ،دين يې مطلوب وي ،په کم شي قناعت کوي ،هغه ددين کار کوي .

## دوصول الى الله درې لارې

دکاميابي لار،خداى پاک ته درسيدلو لار اودالله تعالى ﷻ درضا حاصلولو درې لارې دي : يوه لار دطاعت ده چې په عبادت اوبندګي باندې سړى خداى پاک ﷻ ته نږدې شي . الله تعالى ﷻ وايې چې ماته بنده په فرض عمل رانږدې کېږي بيا په سنتو اونفلو رانږدې کېږي تردې پورې چې زما محبت ورسره پيداشي ،کله چې زما محبت ورسره پيداشو نوزه دده سترګې شم په ماليدل کوي،زه

لاس شم نیول راباندې کوي،زه یې پښې شم تلل راباندې یې کوي،نولنډه داچې خدای پاک ﷻ یې خپل ځان وبولي.
نوبود عبادت لارده دطاعت په لار خدای پاک ﷻ ته انسان غټ مقام ته رسیږي ؛خو مشکل ځکه ده چې دومره طاعت اوبندګي چې بالکل غفلت ورڅخه ونشي ،په دې وس وخت کې څوک کولای نه شي.
دوهمه لار: خدای پاک ﷻ ته درسیدلو دوهم لار دمصیبتوده چې تکلیفونه ورباندې راشي اوبیا صبر پرې وکړي ،نوبیا په دغو تکیفونو باندې ګناوې بخښل کېږي ،دالله تعالی ﷻ رحمت ورته متوجې کېږي .اودرجې یې پورته کېږي.
دریمه لار: خدای پاک ﷻ ته درسیدلو چې ډېره اسانه اوبې تکلیفه ده هغه داده چې کوم څوک دخدای پاک ﷻ دوستي ته رسیدلي وي ،ته دهغو په زړونوکې محبوب شي دهغو له تاسره مینه پیداشي.
اوله : طبقه په خپل طاعت اوعبادت رسیدلي.
دوهمه : په مصیبت رسیدلې، او دریم داولیاوو په محبت رسېدلي دي. اوس ته ددوی په خدمت کې لګیا شوې ،تا ددوی ملګرتیا غوره کړه ، دتا ددوی سره تعلق پیداشو اوددوی له تاسره مینه پیداشوه نوکله چې دالله تعالی ﷻ ددوست له تاسره مینه پیدا شوه نودالله تعالی ﷻ مینه درسره پیداکېږي.
نودغه لار ډېره نږدې اواسانه لار ده ،نه دې طاعتونه اوچهلې تیرې کړي اونه مصیبتونه اوپریشاني درباندې راغلې ،فقط

دعلماء خدمت دې وکړ، ددوی زړه درنه خوشحاله شوي اودعا یې درته وکړه.

په دعا وو ډېر لوی کار کېږي ،دخدای پاک ﷻ ددوست په خدمت الله تعالی ﷻ خوشحالیږي نوبس تاته یې له لنده درکړه.

## کله په یوه دعا د سړي تول کارونه جوړشي

زموږ خلیفه صاحب حضرت قطب المشائخ مولوي دین محمد اخنداره (قدس الله سره ) قصه کوله ،کومه ورځ چې دده دخلافت دستار بندي کیدله موږ ته یې پټ ځای کې داقصه وکړله ،وایي چې غالبا خدای پاک ﷻ ددې کار( دخلافت درجې ته رسیدل ) دسبب جوړولو داکار ګرځیدلی وي چې دسلیمانخویوسپین ږیری ملاصاحب په ډیرفقراومسکنت حال کې راغی اوډېر تنګ دستی و،نوکور ته مې بوته ،نوخلیفه صاحب مبارک خودکشف خاوند و ،نووایې چې دستي مې نسوارې ورته راواخیستل چې نسوار وکړه، بیامې دستي چای ورته راوړ ،چای یې چې وخوړ بیا مې مړی ورته راوړه اوله مړیه خوړولو وروسته مې بیا چا ی ورته راوړ.

نوبیامې دده دحاجت پوره کولو هڅه وکړه خوچونکی زما سره نورې روپۍ نوې یواځې په واسکټ کې مې پنځوس روپۍ وې هغه هم په کورکې پروت وې،نو دکورنۍ خلک خوراباندې پوه و ېفقیر راغلی وس به بیا هرڅه ورکړې نوهغه یې له واسکټ څخه

ایستلې وي ،کله مې چې واسکټ راواخیست چې ګورم روپۍ پکې نشته نو یوطالب ته مې وویل چې پنځوس روپۍ راکړه بیا به یې درکړم ؛نوهغه پنځوس روپۍ مې ورکړي .نودغه فقیر سر سرتورکړ اومخ په قبله ودریده دعایې راته وکړه.

دغه واقعه غرمه پیښه شوه اوماسپښین حضرت انوارالمشائخ (قدس الله سره ) حال راولیږه چې دلته راشه چې ورغلم راته ویې ویل چې بس پټکی تیارکړه دتادخلافت دستاربندي ده.

حضرت قطب المشائخ صاحب ( قدس الله سره ) ډېر عابد اوپرهیز ګار او دالله تعالی ﷻ په طاعت اوعبادت کې یې ډېر زیات تکلیفونه تیرول ؛خوقسم ده چې په یوه دعا سره دانسان دسلهاو کالنو کار جوړیږي.

## داولیاوو کرامو په معمولي خدمت سره هم ډېرې غټې برخې ترلاسه کیږي

یو ولي په غسل خانه کې ځان پاکه وي خو اوبه ورخلاصي شوي ،دیومشکل سره مخامخ ده ،یومرید ته داخیال ورغی چې کیدای شي اوبه ورکمې وي ؛نویوه بوکه یې دکوهي نه راویسته او ټانکی ته یې ور واچوله.

کله چې دغه ولي له غسل خانې څخه راووت نوپوښتنه یې وکړه چې دا اوبه چادغه ټانکی ته را واچولي ؟ دمرید په دې فکر شو چې بې ادبي مې نه وي کړي، څه ونه ویلې اوچپ شو. ولي بیا

وویل چې دا اوبه چا را واچولي بیا غلی شو. دغه ولي وویل چې ډېر ښه وخت یې اوبه راورسولې زه ډېر ورنه خوشحاله یم، بې ادبي یې نه ده کړې. دغه مرید ورته وویل چې ما در واچولې. دغه ولي ورته وویلې چې تا په یوه بوکه دومره مقام واګاټه چې فلانکي په دیرشو کالنو کې هم نه و ګټلی. دالله تعالی ﷻ په خزانو کې څه کمی نشته.

حضرت ابن عباس ﷺ دحضرت نبي کریم ﷺ یو خدمت وکړ، زړه یې ورنه خوشحاله شو، دعا یې ورته وکړه په ټول امت کې اوس په رئیس المفسرین اوحبر الامت سره یادېږي. ځکه چې دحضرت نبي کریم ﷺ دعایې وګټله. په یوه دعا یې کار جوړ شو.

نودا علماء یا طلباء یا اولیاء اودا ملنګان چې خلکوته په نظرنه ورځي دا دخدای پاک ﷻ په نزد ډېر عزتمن دي نوددغو سره تعلق ساتئ، ګورئ چې په سوچ کې دا درنشي چې زه خومالدار یم غټ سړی یم اودغه خو زموږ په وظیفو اوچندو رالوی شوي دي. ډېر خلکوته دملا اوطالب په هکله داسوچ وي چې زه کومک ورسره کوم نودی باید زما تابع وي. ګورئ که په طبعیت کې موداخبره راغله قسم ده که کامیاب شئ.

نوحضرت نبي کریم ﷺ وایې چې زه له تاسوڅخه نور اجر نه غواړم یواځې دخپل جای نیشینو، دخپل نسب سره دتاسي محبت غواړم، ددغو په محبت به ماته را رسیږئ اودما په محبت به الله تعالی ﷻ ته رسیږئ، اوکوم انسان ته چې دالله تعالی ﷻ محبت پیدا شو هغه په دنیاهم کامیابه ده اوپه اخرت کې هم کامیابه ده.

## حضرت نبي کريم ﷺ دنيا له څه شي سره مشابه کوي؟

نوپه عباداتوکې هم بايد کوشش وشي حضرت نبي کريم ﷺ وايي: ﴿الدنيا ملعون وملعون مافيها الا عالم اومتعلم اوذاکر وما والاه﴾ يعني دنيا ملعونه ده اوهغه څه چې په دنياکې دي په ټولو باندې دخداى پاک ﷻ لعنت ده مګر عالم اومتعلم اوذاکر اوڅوک چې دالله تعالى ﷻ بندګي کوي هغه ملعون ندي ،څوک چې ددوى سره تعلق ساتي هغه ملعون ندي ، څوک چې علم حاصلوي هغه ملعون ندي ، څوک چې درس اوتدريس کوي هغه معلون ندي نوره دنيا دلعنت شى ده .

حضرت نبي کريم ﷺ په لار کې يوپړسيدلى اوچينجن سيرلى وليدل نوصحابه کرامو ﷺ ته وايې چې داخلک له دې سيرلى څخه په تنګ شوې دي اوبهر يې راغورځولى دى ؟ صحابه کرامو ﷺ ورته وويل چې هو يارسول الله ! دامردار سيرلى څه کوي. حضرت رسول الله ﷺ ورته وايې چې خداى پاک ته دنيا تردې مردارې نه هم ذليله ده .

له دېنه څوک دامطلب وانه خلي چې دنيا ګټل ناروا دي بلکې دنيا ته خيرهم ويل شوې دي خداى پاک ﷻ فرمايي ﴿ وَإِنَّهُۥ لِحُبِّ ٱلْخَيْرِ لَشَدِيدٌ ﴾ خوپه اصل ذات کې خداى پاک ﷻ وايې چې : وَلَوْ

بَسَطَ ٱللَّهُ ٱلرِّزْقَ لِعِبَادِهِۦ لَبَغَوْا ) که چیرته موږ دنیا اورزق ورزیات کړای وی نو سرکشي به یې کړې وه.

په اصل ذات کې یې طغیان پروت ده که نه دخیرکارونه هم ډېر ورباندې کېږي ،دحضرت صدیق اکبرؓ،حضرت عمرفاروقؓ اوحضرت عثمان غنیؓ په دنیاکې دجنت دزیرې خبرې چې اورو دا ټول یې ددنیا په برکت حاصل کړي دي ،ددې دا مطلب نه چې دنیامه ګټې ،دنیاګټئ خو عبادت مه پرېږدئ په کومه دنیاچې عبادت پاته شو هغه حرامه ګرځي اوچې عبادت پرې پاته نه شي دنیاښه ده،ښه خوره ،ښه چیښه اوښه اغونده الله تعالیٰﷻ پرې خوشحالېږي ،الله تعالیٰ ﷻ چې چاته کوم نعمت ورکړی وي بایددهغه نعمت اثر ورباندې ښکاره شي په دې الله تعالیٰ ﷻ خوشحالېږي ،چې علم یې کړی وي دایونعمت ده نو درس ،تدریس، وعظ اونصحیت پرې کوي دایې اثار دي الله تعالیٰ ﷻ ورباندې خوشحالېږي،الله تعالیٰ ﷻ ورباندې راضي کېږي.

نوالله تعالیٰ ﷻ دنیا پیداکړي زموږ له پاره ده ،داځومره حیوانات اوکروندې چې دي داټولې یې دانسان دفائدې لپاره پیداکړي دي ، دنیا په داسې طریق وګټئ چې ارام اوراحت درته پیداکړي ،په دنیاکې هم پرې ارام شئ اوپه اخرت کې هم پرې ارام شئ اوپه داسې طریقه یې مه ګټئ چې په دنیاکې هم پرې ذلیله وئ اوپه اخرت کې هم پرې ذلیله شئ.په داسې طریقه یې وګټئ چې په دنیاکې هم پرې عزتمند شئ اوپه اخرت کې هم پرې عزتمند شئ.

نودالله تعالی ﷻ دې زموږ له حقیقي علماء سره محبت پیداکړي چې دهغو په واسطه دخدای پاک ﷻ اودرسول الله ﷺ محبت زموږ په برخه شي اودامحبت به هلته پیداکېږي چې په ځان کې دالله تعالی ﷻ احکام اودحضرت نبي کریم ﷺ سنت طریقې عملي کړواودډین رنګ راباندې ښکاره شي.

## مسلمان باید خپله اسلامي جامه بدله نه کړي

تاسو پام وکړئ چې سیکان کافران دي مګر ددوی داخپله عقیده ده چې ویښته نه پرې کوي اوپټکی وهي ،هغه دخپلې عقیدې څخه نه اوړي اوهرڅوک په دې پورتنیو ښوباندې پیژني چې داسیکان دي ؛نوپه مسلمانو کې داسلام داسې اثراونښې ښکاره شي چې دهغو په وجه دوی په مسلماني وپیژندل شي اوله ده سره دخلکو مینه اومحبت پیداشي چې الحمد لله چې مسلمان مې ولیدل ،داسې نه چې دده اوانګریزانو فرق نه کېږي ،ددوی اودیومفسد فرق نه کېږي.

یوځل زموږ دمدرسې داوبو دماشین لپاره یوسپین ږیری مستري راوستی و، ؛نوپه روژه کې یې له یومولوي صاحب اوبه غښتلې چې تږی یم اوبه راکړئ،خوهغه مولوي صاحب اوبه نه وي ورکړي نویوطالب ته یې دې مستري ویلې و چې داڅرنګه بې کاره خلک یئ چې په چاموزره هم نه خوږېږي؟ صله رحمي هم نه کوئ.

نو مسلمان هم ده او په مدرسې کې هم کارکوي خو له خدای ﷻ
څخه نه داريږي روژه خوري.

هغه ګنهګارهم ښه وي چې ګناه خوکوي خوله خدای پاک ﷻ
اوله مخلوق نه حيا ورته دريږي ،ددې حيا په وجه دغه ګنهګار ته
خدای پاک ﷻ دتوبې توفيق ورکوي ؛خو هغه ګنهګار چې په ګناه
کې دلاوري وي ددغه بيا خدای پاک ﷻ توبه هم نه قبلوي اوورته
په غضب وي ،اکثره قومونه له دې وجې نه تبا شوي دي چې په
ګناه کې به يې دلاوري کوله ،دلوط عليه السلام قوم دومره بې
حياشو چې په عام مجلس کې به په يوبل سپريدل اولواطت به يې
کاوه،نوخدای پاک ﷻ ورته په غضب اوقهرشو داسې يې تباکړل
چې جبرائيل امين عليه السلام دلوط عليه السلام ټول قوم دومره
پورته کړل چې په اسمان کې يې چرګانو اذانونه واوريدل شول
اوبيا يې دله پورته نه ښکته راوغوځول اوبيا دتيږو باران پرې وکړ
اوتر نن پورې په هغه ځمکه باندې اثر ښکاره ده اوهيڅ شی نه
زرغونه وي ؛ددې وجه داوه چې ښکاره يې بې ادبي کوله اوله
خدای پاک ﷻ نه ډار اوحيا نه ورته دريدله.

نن هم خلک دومره دلاوره شول چې يومسلمان دبل مسلمان په
مقابل کې جنګيږي اوبيا فخر هم پرې کوي ،داسې هم خلک شته
چې په جماعت کې جمعه ولاړه وي اودوی په فتبال لګيا وي.
داسې دفتنو دور دی خدای پاک ﷻ دې خپل رحم اوکرم وکړي چې
ددغوله ګناهونو څخه نفرت پيداشي اوداخرت طرف ته
دمسلمانانو توجه پيداشي. واخردعوانا ان الحمدلله رب العالمين

# (٥٦) مجلس

## داعتكاف بيان

الحمد لله والصلوة والسلام على سيدنا الانبياء وعلى اله
واصحابه الاتقياء امابعد فاعوذ بالله من الشيطان الرجيم بسم الله
الرحمن الرحيم

﴿ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۚ ﴾

(يعني تاسو ملګرتيا وکړئ په نيکي اوتقوی سره اوملګرتيا مه کوئ په بدي اوسرکشي سره.)

نن به داعتکاف په هکله بيان وکړو ، اعتکاف دروژې مبارکې په اخيرني لسو ورځوکې په جماعت کې داعتکاف په نيت اوسيدلو ته وايي اوداد حضرت رسول الله ﷺ سنت عمل دی.

دهرعمل لپاره نيت ضروري دي نوداعتکاف لپاره هم نيت کول ضرور دی په پښتوکې يې نيت داسې دی : ای خداوندمتعاله ! زه نيت دسنت اعتکاف لرم ته يې راته اسانه کړې اوله مانه يې قبول کړې.

له دينه وروسته به جماعت ته داخل شي او (۹) ورځې که مياشت دنه ويشتو ورځو وه اويا (۱۰) ورځې که مياشت د ديرشو

ورځو وه تيرول لازم دي اوپه جماعت کې به دې نيت شپې تيروي چې زه دلته دالله تعالى ﷻ په کور(جماعت) کې دالله تعالى ﷻ دعبادت لپاره ناست يم ؛ نوددې کس ټول وخت دخداوندمتعال ﷻ په عبادت کې شمارل کېږي ځکه چې مسئله داده چې هريو لمانځه ته انتظار کول په خپله عبادت دى نودده ناسته هم دلمانځه په اراده اونيت وي نودومره ثواب يې وي لکه چې په لمانځه مشغول وي ؛ نوداسې آدب به کوي لکه چې انسان په عين عبادت کې مشغول وي ،له بې ځايه مجلسونو،لهو اولعب ،ټوکې اوټکارې به په جماعت کې نه کوي ځکه چې معتکف دثواب ګټلوله پاره دخداى پاک ﷻ کور ته راغلى اوبيا دعبادت په نيت راغلى نوپه چپه ناسته ،په خوراک اوڅښاک ،په تلاوت اوذکر ،په لمانځه ،ارام اوخوب ټول په عبادت کې شمارل کېږي ځکه چې دعبادت په انتظار ناست وي.

نوهغه خلک چې معتکفينو ته ددعا اوبرکت په نيت ورځي نوهغه دې داسې نه کوي چې معتکف له عبادت نه وباسي اووختونه يې ورضائع کړي ، بلکې دومره وخت به ورسره تيروي چې هغه له عبادت څخه په بل شي مصروف نه شي لکه يوکس چې ديومريض پوښتنې ته ورځي نودومره وخت به ورسره تيروي چې هغه ورنه په تکليف نه شي ځکه مسئله داده چې دمريض پوښتنې ته چې څوک ورځي نودومره وخت به ورسره تيروي لکه يوميرمن چې غوا رالوشي اوبيا ليږ دمه ورته وکړي اوبيا يې به لوشلو پيل وکړي ؛نوچې دمريض پوښتنې ته څوک ورځي په دې نيت ورځي

چې دې دغه کس دمرض په وجه ډېر پاک دی کیدای شي خدای پاک ﷻ دده دعا قبوله کړي اودعا دې ورنه وغواړي خو دومره وخت به نه ورسره تیروي چې مریض ورنه په تکلیف شي.

نومعتکف ته خلک په دې نیت ورځي چې دی دخدای پاک ﷻ دکورمیلمه ده اودهغه کور ته په ننواتي ورغلی نوکیدای شي دده په وجه زما کارونه جوړ شي خوبې ځایه وخت به نه ورسره تیروي.

بلکې ده ته دا پکار دی چې په خپله ولاړ شي اومعتکف ته دویلو ضرورت پېښ نشي چې ولاړ شه زه اوس تلاوت کوم،یالمونځ کوم یا بل عبادت کوم.

## داعتکاف آداب

معتکف چې په اعتکاف کې کیني دده لپاره د آداب ضرور ده چې دا جومات هغه ځای ده چې له ضرورت پرته خوراک،چښاک اومجلس پکې روا نه دی خو ددغو شیانو اوس ده ته ضرورت ده حتی داودس دا حکم دی چې که دجومات ککړیدلو ویره نه وي نوبیا بهر ته وتل ورته روا نه دي خو که دککړیدلو ویره وه بیا دضرورت په خاطر وتلی شي.

* دضرورت په خاطر دقضاء حاجت اواودس لپاره له جومات نه بهر وتل روا دي خو دضرورت نه پرته هلته به زیات وخت نه تیروي له اودس کولو نه وروسته به سمدستي جومات داخلیږي.

• که چیرته په دې جومات کې دجُمعې لمونځ نه ادا کیده نوبل جومات ته تلل روادي ؛خوکتابونه دومره اندازه احتیاط لیکلی چې داسې وخت به ورځې چې یواځې سنت وکړای شي اودجمعې له کولو وروسته به بیرته خپل جومات ته ځان رسوي ،اګرکه هغه جومات دی خو ده په دې جومات کې داعتکاف التزام کړی چې زه به په دغه جومات کې کینم.

• دضروري غسل کولو لپاره له جومات نه وتلی شي .که دمعتکف احتلام وشي اوغسل وربانديې واجب شي نومسئله داده دغه کس به تیمم ووهي اوله تیمم نه وروسته که په جومات کې دغسل کولو ځایونه موجود وي نوهمدغلته دې في الحال غسل وکړي ځکه چې د جنب شخص لپاره په جومات کې وخت تیرول روا نه دي اوکه دغسل کولو ځای نه وي نوبیاکه څوک ورسره وي هغه ته دې ووایې چې ماته اوبه راوړه ضرورت ورته لرم ،که اوبه یې ورته راوړي نوغسل به وکړي اوکه څوک ورسره موجود نه وي نوتیمم دې ووهي اوچې سهار شو له څاځخه دې اوبه را واغواړي اوغسل دې پرې وکړي اوکه څوک وسره نوي نوبیا دې خپل کور ته او یاچې کوم ځای جومات ته نږدې وي هغلته دې غسل وکړي.

• ښځه په خپل کور کې چې په کومه کوټه کې لمونځ کوي هغلته دې پرده راتاوکړي .هغه ددې لپاره دجومات حیثیت لري ،

هغلته خوراک ،څښاک اونیک مجلس کولی شي خوله هغه ځای نه به له ضرورت پرته نه وځي.

که سړی په جومات کې په اعتکاف کې ناست دی اودځه مشهورې ضرورت پېښ شو اودکورخلک دمشورې لپاره ورته راغلل نومشوره ورکولی شي. همدارنګه ښځه په خپله کوټه کې داعتکاف په ځای کې ناسته ده دکورپه کاروکې لور،نګور او داسې نوروته مشوره ورکولی شي . خو له هغه ځای څخه به دباندې نه راوځي .

ځینې عوام ورونه په اعتکاف کې ناست وي ،قرانکریم یې نه وي زده ،نور اذکارېې هم نه وي زده چې هغه وکړي نوددوی داعقیده وي چې داعتکاف له ضروریاتو نه داده چې چپه خوله کیني،غږیدا نه کوي ،تردې پورې چې که وړه خبره وکړي نو خلک ورته وایې چې اعتکاف یې خراب کړ؛ نوورونو! په دې ځان پوه کول پکار دی چې په اعتکاف کې خبرې منع نه دي ،په اعتکاف کې له ضرورت نه پرته له جومات نه وتل منع دي ،په جومات کې روا مجلس کولای شي ،خپل ضروریات له چاغوښتلی شي اودارنګ چوپه خوله هم کیناستلی شي خودغه چوپه کیناستل عبادت نه دی اوکه ددې وېره وي چې داسې نه په اعتکاف کې غیبت، لهو اولعب رانه ونشي ؛نوبیا چوپه خوله کیناستل هم عبادت ده .

دحضرت نبي کریم ﷺ ،دصحابه کرامو﷢ دامت دنوروبزرګانو عادت داوو چې ﴿ کثیرالصمت ﴾ یعنې زیاتره به پټه خوله ناست

وو ،بې له ضرورت نه به يې غږيدا نه کوله او که به چا بيا دکومې مسئلې پوښتنه وکړه نوداسې تفصيل به يې ورته کاوه لکه درياب چې روان شي ،داسې نه چې خبرې يې نه کولې .

نوچې په اعتکاف کې کوم کس ناست وي ذکر،تلاوت اونورعبادت دې کوي يا دخدای پاک ﷻ په مصنوعاتو اومخلوقاتوکې سوچ اوفکر کوي، چې خدای پاکﷻاسمانونه ځمکې، انسانان اونور مخلوقات په څومره ښه کيفيت پيدا کړي .

نوروخلکو ته په کار داده چې دمعتکفينو اوقات ورضائع نه کړي ،دې مجلسونه بايد نه وي ځکه چې په دې مجلس کې دکار خرابيدلو ويره وي ،يابه په غيبت لګياکيږي،يابه په درواغو لګياکيږي يابه په کوم بل ناروا کار لګياکيږي .

نوپه اعتکاف کې ناسته لويه خوش قسمتي ده .

دادېر بهترين کار دی چې ډېره غږيدا نه کيږي ځکه چې سړی ډېر نه غږيږي عقل يې هم په ځای وي ،هغه سړي بيا چې خبرې کوي هم دعقل خبرې کوي .

اوچې تولړ ورځ کوم کس په خبرو لګيا وي بيا يې چې څه په خوله ورشي هغه وايې. لکه يوسالک وايې :

زبان ببره بگوبجی نشترسم وبکم
به ازکسی که زبانش نباشد اندر حکم

دسړي چې ژبه پرې وي اوګونګی په کونج کې ناست وي له هغه سړي نه بهتر دی چې ژبه يې په خپل اختيار اوکنترول کې نه وي.

ځکه چې حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم یوصحابي ته نصیحت کوي اوبیا په اخرکې ورته وایې چې دتولوشیانوڅخه غوره درونه ښایم ؟ هغه ورته وایې چې بلې هوا راوبې ښیه حضرت نبي کریم ﷺ ژبه ورته ونیوله چې ژبه په کنترول کې ساته .

یعنې که یوه خبره دې بې ځایه وکړه هم ،ولاړې غرق شوې ،که دخپل عبادت دې صفت وکړهم غرق شوې ځکه چې ریاکاري اوعجب پکې راځي ،که درواغ اوغیبت وشو هم لاړې تاواني شوې

.

اوکه پته خوله ناست وې دهغه پوښتنه نشته؛نوردهرې خبرې پوښتنه شته ،که داسې خبره وکړي چې مسلمان پرې ازاریږي ،دمسلمان سپکوالی پکې راغی دهغه غیبت دې وکړ ،پوچ الفاظ دې وویل ددې تولو پوښتنه شته .

لکه سالک چې وایې :

ای زبان ہم گنج بی پایان توئی ای زبان ہم رنج بی درمان توئی

اې ژبې ته خزانه بې انتهایې داسې کارونه وریاندې کیږي که حق وریاندې بیان کړې قرآنکریم اوحدیث نبوي اودمذهب کتابونه وریاندې بیان کړې دنصیحت خبرې وریاندې وکړې ځینې خبرې داسې وي چې په هغوی باندې الله ﷻ خوشاله کیږي چې دهغه پای بیاجنت ته ننوتل دي اوځینې بیاداسې خبرې دي چې دهغوی بیادوا اودرمل نشته .

لکه شاعرچې وايي: **جراحة السنان لها التيام ولايلتام ماجرح اللسان**

همدارنګه دپښتو شعر ده چې وايي:

پرهر د تورې ښه ده چې جوړيږي په مرهم
ولې بد پرهار د ژبې ده له عمره سم سم

دتورې اونېزې پرهرجوړيږي خودژبې پ‌‌هر نه جوړېدونکی مرض دی دمثال په ډول لکه يوڅوک چې پيغوردرکړي دهغه زخم بيانه جوړيږي لکه په يوه حديث شريف کې هم راغلي دي **﴿ المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده ﴾** که ليږخيرشوتوپه حديث شريف کې هم لومړی دژبې يادونه شوې ده اومحدثين هم وايي چې داژبه يې ځکه مخته کړه چې دژبې ضرر اوزيان عام دی اودعموميت وجه يې داده چی که کمزوری تن وي اوکه زورروي نوهم غيبت کولای شي اوپاتې شودلاس ضررهغه هرسړی نشي ترسره کولای دژبې غيبت ښځه هم کوي چې په بشرکې دنرپه مقابله کې ډېره کمزورې ده خوسره له هغه بياهم دژبې ضررپه ډېره ښه توګه رسولی شي اوبل دژبې ضررغائب اوحاضردواړوته رسيږي اودلاس ضررغائب ته نه رسيږي دمثال په توګه که يوسړی له تاڅخه لري اوغائب وي نوته يې مړکولای نشې خودژبې ضررکه نوموړی سړی ددنياپه هغه ابل سرکې هم وي ورته رسولای يې شې اوياداسې چې دژبې له ضرراوتاوان څخه مړي هم ندي خلاص اودلاس ضررخونشې ورته رسولای نوچې هرمجلس له ذکرالله څخه خالي وي اوزيات شي نوخامخا ژبه دسړي له کنترول څخه

وزي دمثال په ډول که په جومات کې سره له دې چې دخدای ﷻعبادت اوخوشاله کولوځای دی خوکه مجلسونه پکې شروع شي نوهغه دسړي هغه نیک عملونه داسې له منځه وړي لکه اورچې لانده اووچ لرګي له منځه ځخه وړي اویالکه یوحیوان چې وابنه خوري نوهغه بیاوچ اولانده نه ګوري خوري یې نوله همدې وجې بایدجوماتونه دمجلسونوځایونه جوړنه کړل شي دجومات ادب بایدوشي بلکې هغه کس چې په جومات کې اعتکاف کوي هغه هم بایدجومات ډېرزیات خیال وساتي اونورخلک هم بایدداعتکاف کوونکودوخت لحاظ وساتي دهغه وختونه بایدورخراب نکړي لکه یوانسان دی هغه خپل خوبونه کوي اوخوب یې ښه پوره کړی وي اوهغه ابل چې معتکف دی هغه هم انسان دی شپه یې په عبادت دخدای تعالی کې تېره کړې وي اودسهارله خواهم دوعاګانې اودالله تعالی ځخه مغفرت غواړي نوخوارکی به خامخابې خوبه شوی وي اوته ورشې له خوبه یې وباسې هغه هم انسان دی بایدویده شي اوخوب پوره کړي

**مسئله** : اعتکاف سنت کفایي ده که په کلي کې یوسړی هم کیناست نودټول کلي غاړه ورباندې خلاصیږي اوکه په دغه کلي کې یوسړی هم نه پکې کیناست نوټول کلی دسنتوپه پرېښودلوباندې ملامت دی تردې پورې که په کلي کې یوه ښځه هم داعتکاف له پاره ناسته وي نودټول کلي غاړهورباندې خلاصیږي حضرت نبي کریمﷺبه پخپله اعتکاف کولوتردې چې

دی مبارک له دنیاڅخه ولاړبیابه امهات المؤمنین اعتکاف کولودیادونې وړخبره ده چې په معتکف باندې دټول کلي غاړه خلاصیږي له دې وجې څخه یې په ټول کلي باندې احسان دی له همدې وجې خوکتابونو لیکلي دي چې دمعتکف خدمت کول په ټول کلي باندې لازم دی څکه چې کلمیوال به ټول په ثواب کې ورسره شریک وي کیدای شي په معتکفینوکې به داسې خلک هم وي چې مسافربه وي دلته به کورنه لري اوبل به دالله ﷻ دهغه ایت مبارکه مصداق شو چې ترجمه یې داسې ده چې تاسې یوله بل سره په نیکوکارونوکې کومک اومرسته کوئ نوله همدې وجې که تاسې له معتکفینوسره کومک وکړئ نوکه تاسې په کورونوکې هم ناست یاست اللهﷻبه تاسې ته هم داعتکاف ثواب درکوي څکه چې دیوه مسلمان مشکل ورته حل کوې اوبیاپه ځانګړې توګه هغه مسلمان چې دینداره اوداللّٰه تعالی دوست وي داخوڅه وړه خبره نده .

## د یومسلمان د مشکل حل کولو کوشش د اویاوو اعتکافونوثواب

یوځل حضرت عبدالله بن عمر(رضی الله عنهما) په اعتکاف کې ناست ؤیوتن ورته راغی اوورته وې ویل چې په ماباندې دفلاني پوردی اووس وخت پوره شوی دی خوله ماسره څه نشته چې ورېې کړم نوده مبارک ورته وویل چې ستاڅه خیال دی زه درسره

ولاړشم؟ نوهغه کس ورته وویل چې ستاخوښه ده ؟نوحضرت عبدالله بن عمر(رضي الله عنهما) ورسره روان شو له جومات څخه کله چې له جومات څخه ووتل نوهغه ابل تن داګومان شو چې ګواکې دده مبارک اعتکاف له یاده وتلی دی نوورته وې ویل چې ته خوپه اعتکاف کې ناست وې ؟ اعتکاف دې لکه چې له یاده وتلی دی چې له ماسره روان یې نوحضرت عبدالله بن عمرﷺورته وویل نه اعتکاف مې هیرشوی ندی بنه مې په یاددی خوماله حضرت نبي کریمﷺڅخه اوریدلي دي چې څوک دیوه مسلمان دمشکل په حل کولوکې کوشش وکړي خدای پاک د اویاوو کلونو قبول شوي اعتکاف ثواب ورکوي الله تعالی خوډېرمهربانه ذات دی

**یادوونه**: دجومات برنده دجومات په حکم کې ده نومعتکف په برنده کې هم اوسېدلای شي خو په جمعه سره لمونځ کولوله پاره به له برندې څخه نه وزي ځکه چې داعتکاف له پاره جومات شرط دی اودجمعې کولوله پاره جومات شرط ندی بلکې په بیابان کې هم کېدلی شي نومعتکف به دجمعې په وخت کې له برندې څخه نه وزي اونورخلک کولای شي چې دباندې له برندې څخه هم په امام پسې ودرېږي اودثواب په لحاظ باندې هغه جومات چې په هغه کې دجمعې لمونځ کیږي په هغه کې اعتکاف کول ترنوروجوماتوپه پنځه درجې زیات ثواب لري.

**تنبیه**: بله مهمه مسئله داده چې دادښځومرض کله کله له اختیارپرته پیداکیږي نوچې کله دامرض ورته پیښ شي نوروژه به

نه نیسي نواعتکاف هم وربانديږ نشته خویوصورت یې داسې
کیدلای شي چې دډاکټرانوپه واسطه دغه میاشتنی مرض بدل
کړي نوچې دوااستعمال کړي بیاپه هغه میاشت کې مرض نه ورته
پیښیږي مفتي صاحبانودافتوی ورکړېده چې کله یوه ښځه حج ته
ځي نوکولای شي چې داسې دوایي استعمال کړي چې هغې ته
دحج په موکه باندې حیض پیښ نشي نوداعتکاف په وخت کې هم
کولای شي خوداهلته چې دیوې ښځې عادت معلوم نه وي که
دیوې ښځې عادت معلوم چې یاپه اول اویاپه اخیردمیاشتې کې
دی هغه دې بیادډاکټرپه مشوره دغه دوااستعمال کړي

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین
وصلی الله تعالی علی خیرخلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و
مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین





# (۵۷) مجلس

## دانسان دکامیابي مهمې لارې په
## قرآنکریم، احادیث اوداولیاء الله په لارتلل دي

ددې له پاره چې زمونږ کامیابي په څه شي کې ده امام بخاري صاحب پخپل کتاب بخاري شریف کې چې دالله تعالی له کتاب څخه وروسته دمخلوقاتو په کتابونوکې ترټولوبهترین کتاب دی چې دحضرت نبي کریم ﷺ حدیثونه یې پکې راټول کړي دي اوډېرپه تکلیف یې راټول کړي دي چې شمېره یې نه زره دوه اتیا(۹۰۸۲) ته رسیږي اوهرحدیث ته به یې غُسل کولواودوه رکعته لمونځ به یې کولو اواستخاره به یې کوله چې په خوب کې به ښه یقیني ورته معلومه شوه چې دادحضرت نبي کریم ﷺ حدیث دی بیابه یې په لیکلوباندې شروع کوله نوامام بخاري په دې کتاب ترټولودمخه خبره دوحیې کړېده چې خدای ﷻ خپل پیغمبرته وحیې څرنګه رالېږلې ده نوامام بخاري صاحب داخپل کتاب دانسانانو دګټې اومنفعت له پاره جوړکړی دی

خودانسانانودګټې لارې درې شیان دي [۱]دیوه شي خیراوشرپه حواسو معلومیږي دمثال په توګه په سترګویې ویني

چې په دغه شي کې مې ګټه ده او په غوږونو يې اوري په ژبه باندې يې وڅکي په لمس (لاس لګولو)[۲] انسان دعقل په واسطې باندې پوشي ورته معلوم شي چې په دې کې خير يا شر دی اوکه په ظاهري اسبابو ورته معلوم شي هم نودی وايي چې ماته تجربه ده هغه کارکوي وايي چې په عقل باندې ماته ددغه شي خيراوشرمعلوم شوی دی

نودغه دواړه لارې خدای پاک ﷻ دانسان په وجود کې دګټې له پاره چې خيراوشروربانديې وپېژني پيداکړې دي چې يوعقل اوبل داظاهري حواس دي

خودادواړه لارې ناکامې اوکمزورې دي څکه يوسړی چې په سترګوباندې يوه شي ته ګورې پکې خطاکيږي کتابونه مثال ورکوي لکه دمثال په توګه يوسړی په موټرکې سپوردی اوموټرروان دی دسړک په څنډه کې ونې دي هغه خوپاتې کيږي نودالېدونکی داګومان کوي چې داونې روانې دي نودادسترګوخطايي شوه اوکه يه؟ نورمثالونه هم شته په عقل باندې هم ډېرخلک خطاکيږي [۳]دکاميابي لاره چې انسان ته دخير اوشرښه طريقه وربښيې هغه وحيې ده الله ﷻ دملايکوپه واسطه خپلوپيغمبرانو(عليهم السلام)ته رالېږلې ده په قرآنکريم کې چې کوم شی الله ﷻ نبودلی دی چی په دې دانسان خيراوپه دې کې دانسان شردی هغه که په زرګونوکلونه هم تېرشي بدلون نه پکې راځي اوپاتې شول زموږحواس اوزموږعقلونه داله خطايي سره هميشه مخ کيږي اودالله تعالی کلام ډېرېې حده عظيم کلام اوبل

داچې ترجمان یې حضرت پیغمبرﷺدی نوموږته چې
خدایﷻقرآنکریم رالیږلی موږته چې دحضرت نبي کریمﷺ
حدیثونه رارسیدلي داټول زموږدخیرله پاره جوړشوي دي نوکه
موږاوتاسې کامیابي غواړوهغه داسې چې په دې فاني دنیاکې
هم خوشاله اوپه اخیرت کې هم خوشالي اوعزت راته نصیب شي
نوداعزت پرته له وحیې څخه په بل شي کې نشته چې قرآنکریم
اوحدیث دي خوداخبره دې پاتې نه وي چې مذهب هم
دغودواړوشیانوخلاصه ده ګوښې شی ندی قرآنکریم داللهﷻکلام
دی موږنه پرې پوهیږوحضرت نبي کریمﷺیې شافي اوکافي بیان
کړی اودحدیث په مطلب باندې نه پوهیږوبیاحضرت امام
ابوحنیفه رحمه الله بیان راته کړی دی زموږاوتاسې له پاره خیرپه
دغه دین کې دی اوس چې موږفکروکړوموږ چې کوم کارونه
کوودعقل اویاحواس ظاهره په واسطه باندې نودمثال په توګه
یوټیکداردی هغه ټیکه نیسي نودی سوچ اوفکر کوي چې په دې
کې ګټه شته نوکله چې ټیکه سرته ورسیږي نوپه پای کې په
لکونوروپۍ وګټې دخدایﷻاودپیغمبرﷺدقرآنکریم اوحدیثو
څخه چې کومه ګټه موږته لاس ته راځي هغه ترابده پورې موږته
ګټه ده.څومره ګناوې چې اللهﷻموږورڅخه منعه کړي یوهغه دټول
وخت له پاره زموږله پاره شراوزهرقاتل دي بلکې زهرکه سړي په
هېره وخښي اوکه یې په لوی لاس وخښي دواړه سبب دمرګ ګرځي
دګټې امیدنه پکې پیداکیږي نوموږ ته چې رب العالمین
قرآنکریم اوحدیث غوره کړي اومذهب یې راته غوره کړی نواې

علماء کرام وامونږ باید پخپل عقل او خپلو سترګو چې په کوم شي کې خیر او شر وینو روان نشو دسترګو لیدلی شي او دعقل فیصله له قرآنکریم او حدیثو سره وګورو که دقرآنکریم او حدیث نبوي تابع وو باید عمل پرې وکړو او که نه نو باید دظاهر حواسو او عقل تابع نشو ځکه هغسې خوپه ډېروانداموکې ظاهراً خیرمعلومیږي خو هغه بیاکله دسړي دجهنم ته دورتللو سبب شي نوپه دې باید مونږ له هغو خلکو څخه پوښته وکړو چې هغوی ته الله تعالی په دین کې بصیرت او پوهه ورکړې وي ترڅو زمونږ دتباهي سبب ونه ګرځي خوکومه لارچې دکامیابي ده چې قرآنکریم او حدیث دپیغمبرﷺ دي هغه مونږ شاته غورځولي دي له هغې سره تعلق نلرو او په خولو باندې لا داخبرې هم کوو چې قرآن ،حدیث او دین پوه شه او ملا او طالب پوه شه دالله تعالی بندګان ځانونه بولو خو دهغه په وینا باندې خبرنه یو دحضرت نبي کریم ﷺ امتیان ځانونه بولو خو دهغه په حدیث باندې خبرنه یو دحضرت امام صاحب دمذهب خلک ځانونه بولو هغه دهغه مسلک نه راته معلومیږي ددې عمده وجه داده چې خپل عقل خطاکړي یو او داسې یې خطاکړي یو چې خدای نخواسته جهنم ته به موبوزي

## شیطان په عقل فیصله وکړه نوابدي ملعون شو

دالله تعالی له طرفه چې حکم وشو چې تاسې اې ملایکو حضرت ادم ﷺ ته سجده وکړئ نو ټولې ملایکې چې دخدای تعالی

غوره مخلوق دی سمدستي په سجده باندې پرېوتلې لکن شيطان دعقل څخه کاروا خیستلوهغه داسې چې زه څرنګه ده ته سجده وکړم زه له اورڅخه پیدایم اودی له ختې څخه پیدادی ختې خوسېېره ده رڼانه کوي نوپه خپل عقل یې فیصله وکړه دالله ﷻ دامرخلاف یې وکړنوله نعمتونوڅخه بې برخي اودټول وخت له پاره یې لعنت په برخه شو

دکافرانوچې څومره ډلې دي دوی ټولو په خپلوعقلونواودحواس ظاهري په بناء باندې کارونه کړي دالله تعالی اودوخت دپیغمبرخبرې یې نه منلې ټول تباه شول نومونږ باید په دې پوه شو چې زمونږ سترګې زمونږ غوږونه اوزمونږ عقلونه هیڅ شی هم ندي ترڅوچې ځانونه په شریعت باندې برابرنکړوکه په شریعت باندې برابرشوبیاچې کله هسې قرآنکریم ته ګوروهم بـه الله ﷻ ثواب راکوي که څه هم دقرآنکریم په مطلب باندې پوهیږوهم نه که یوڅوک دقرآنکریم تلاوت کوي اویوبل کس هغه ته غوږنیسي نوهم خدای ﷻ ثواب ورکوي ځکه دغه اورېدل دشریعت مطابق شول بلکې په هره خبره کې الله ﷻ ثواب درکوي که په شریعت باندې برابره وي دمثال په توګه په قدمونوباندې دعبادت ځای ته روان یې یادذکرځای ته روان یې نوپه داهرقدم باندې الله ﷻ تاته ثواب درکوي مطلب داچې انسان ته چې الله ﷻ دخپلو اندامونو ثواب ورکوي هلته دغه اندامونه دوحیې جلي اووحیې خفي چې احادیث دي چې دهغوی تابع شي اودمذهب تابع شي اوکه دوحیې جلي اویاوحیې خفي اویادمذهب تابع نشو اوغافله شواوغفلت

له تباهي سره مودې اندازې ته ورسیږي چې بیا به زمونږ اولادونه له تباهي سره مخ شي دمثال په توګه لکه نن سبا چې اولادونه لمونځونه نه کوي روژې بیخي نه نیسي بلکې عبادت له سره پېژني نه اوخه وخت وروسته خو الله اعلم چې څه حالات به راځي ایادا اسلام دعوه به کوي او که به دغه دعوه هم پریږدي.

نو هلته امام بخاري صاحب لومړی داایت راوړی دی ﴿ إِنَّآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ كَمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ نُوحٖ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعۡدِهِۦۚ ﴾ الله ﷻ حضرت نبي کریم ﷺ ته وایي چې مونږ تاته وحیې درلیږلې ده چې هغه عبارت دی له قرآنکریم څخه لکه نوح ؑ او نوروپیغمبرانوته.

## په آیت کریمه کې د نوح ؑ تخصیص

**پوښتنه**: دحضرت نوح ؑ قوم یې ولې خاص کړ؟

**ځواب**: ځکه چې حضرت نوح ؑ نه نیم سوه (۹۵۰) کاله په خلکوباندې شفقت وکړ خلکوته یې دعزت او کامیابي دانسانیت ددین دترقي اوادب په خپل منځ کې دوصیلې لاربښوونه کوله خو قوم یې چې هغه چاته هدایت نه ؤشي بې عزتي، بې حرمتي، بې ادبي شروع کړه دخپل مهربانه پیغمبر خبرېي ونه منله دوحیې په خلاف کارونه یې ترسره کړل نوالله ﷻ داسې ورته په قهرشو چې دحضرت عبدالله ابن عباس (رضی الله عنهما) په قول پرته له اتیاوو (۸۰) تنو څخه چې له حضرت نوح ؑ سره په کشتۍ کې

سپاره وونورچې دزمکې په سرڅومره انسانان وواﷲ ﷻ ټول له تباهي سره مخ کړل يعني غرق شول.څکه نه نيم سوه (۹۵۰) کاله حضرت نوح عليه السلام ورته دکاميابي لارښوونه کوله خودوی ونه منله په خپل عقل به يې کارونه سرته رسول دمثال په توګه خپل اندامونه به يې بې ځايه کارول په ښځواوهلکانوبه يې خوندونه اخېستل په شرابوبه يې خوندونه اخېستل دخپل خواږه نبي خبره يې نه منله بيانو اﷲ ﷻ چې هم خالق هم مالک اوهم قادردی هرڅه دده په اختيارکې دي روزي رسان هغه دی مالک هغه دی اوخلک يې دعبادت له پاره پيداکړي خوشي خويې ندي پيداکړي تاسې فکروکړئ چې يوسړی دومره بدبخته شي چې دخدای پاک ﷻ دنماينده پيغمبر حضرت نوح عليه السلام (۹۵۰) کاله په خلکوپورې زړه خوري اوخلک يې بياهم خبره نه مني نواخيرخو اﷲ تعالی چې زمونږ خالق،مالک اورازق دی هغه به نه په قهرکيږي ؟ نوعلماء ليکي چې دغه امت ته همداسې تنبيه اوخبرتياده چې که تاسې هم دخپل پيغمبرخبرې ونه منئ دهغه په لاره روان نشئ اودقرآنکريم قانون په ځان باندې عملي نه کړئ دحديثوتابعداري په ځان ونه منئ نوستاسوبه هم همداسې انجام اوپای وي لکه دحضرت نوح عليه السلام دقوم چې تباهي اوغرقېدايې په برخه شوه.

په دنياکې يې مونږ مثالونه وينو خوعبرت اوپندنه ترې ا خلودترمذی شرحې تحفة الاحوزی يوحديث رانقل کړی دی چې حضرت نبي کريم ﷺ وايي چې زمايه امت باندې به داسې وخت راشي چې شراب په ښکاره ډول ځښي ډمي به ګډوي اوشپه به

لهواولعب باندې تېره کړي سهاربه الله ﷻ بیزوګان اویاخنزیران
جوړکړي وي په دویم روایت کې داسې راغلي چې په اخیروخت
کې به زماپه امت کې داسې خلک وي چې شپې به شراب څونوم
به بدل ورته اخلي لکه دمثال په توګه شرابوته به دمالتې
اویانوروشیانونومونه ورکوي اوشپه به پخپل لهواولعب لګیاوي
په دغه دنیاوي خوندونوبه شپه تېره کړي په زناعریاني فحاشي
بدعمل سهاربه خدای پاک ﷻ زلزلې ورباندې راولي اوپه ځمکه
کې به یې ننباسي.

## دبالاکوټ په سیمه زلزله ولې راغله ؟

دمثال په ډول تاسې دپاکستان دبالاکوټ سیمې ته ورشئ په
هغوی باندې زلزلې په داسې حال کې راغلې چې په همدغو
حالاتوباندې دوی مصروف وو چې زلزلې ورباندې راغلې افسوس
چې مونږدغه شیان په سترګووینوا وپه غوږونویې اورو خود
ځانونو له پاره یې عبرت اوپند نه ګرځوومونږبایدبه متوجې شو
چې که زه په شریعت محمدي باندې عمل ونه کړم خوزمابه
همداسې حال وي لکه دهغونوروامتونولکه څرنګه چې خدای پاک
حضرت نبي کریم ﷺ ته وایي چې دغوخلکوته ووایه چې
یو ،یویادوه،دوه به ګوښي شئ اومشوره وکړئ څکه ډېر خلک
کله په یوه خبره نه سره جوړېږي خوچې یو ،یوځانته شي اوپه خبره
یې سرخلاص شي اویاله یوه به هوښیارسړي سره مشوره کوي

دوه په دوه ناست وي بيا دشي خيراوشربنه ورته معلوميږي
نويو،يويادوه ،دوه دځان سره کينئ چې زماکاميابي په څه شي کې
ده اوزه دڅه شي په وسيله په ورځ دقيامت له عذابه دجهنم څخه
خلاصيږم دقبرله لړمانودقبرله مارانو داورله عذابونودپل صراط
له عذابونودحشرله ګرمي نه هغه چې پنځوس زره کاله چې په سرې
اوږديږي دهغې ورځې له عذابه به زه په څه شي خلاصيږم
داهرسړی چې خپل عقل ليږ په کار واچوي دنياوي ګټې څرنګه
ورباندې کوي په همدغوسترګوپه همدغو غوږونوباندې دنياوي
ګټې څرنګه ښيې سرته رسوي اوداعقل دانسان بياولې دومره بې
کاره شي چې ددين کاربيانه پرې کوي داځکه چې ددين طرف ته
يې متوجې کوي نه ديني کارونه پخپل عقل باندې کوي نه که نه
وي عقل الله ﷻ انسان ته داسې يوجوهرورکړی چې که يوانسان په
غرونوبيابانونوکې اوسيږي اوپيغمبر کتاب اوملايې بيخي په
سترګونه وي لېدلی بيابه هم دهمدغه عقل په واسطه باندې الله
تعالی ﷻ وپېژندلای شي ځکه چې سړی دافکروکړي چې دادومره
اسمانونه دادومره غټه ځکمه دادومره دريابونه داخوشي ندي
پيداشوي دابه خامخا يوصانع لري نودی په خپل عقل سره هم
مسلمانېدلی شي که ليږنورمتوجی شودغه عقل سالم پخپله
باطني رسول دی بايدداسوچ له ځانه سره وکړوچې زه به داالله ﷻ
حضورته دخوشالي په حال کې څرنګه وړاندې کېږم په څه شي به
الله ﷻ اودهغه خوږپيغمبرحضرت محمد ﷺ راڅخه خوشاله کيږي
داخوشالي له قرآنکريم اونبوي احاديثوپرته بلکې له مذهبه پرته

چې ددې دواړوخلاصه ده پیداکیږي اولاړې مدارس جوماتونه اوعلماء دې که یې سړی زده کوي خوافسوس نن سباچې زمونږنسل ته ګورو یاخوټول بې تعلیمه دي اویاله دیني تعلیم څخه بې برخي پاتي شوي دي.

## ځیني جوماتونه دانګریزي تعلیم له پاره کارول کیږي

یوه ورځ په یوه جومات باندې تیریدم که ګورم چې ماسټرصاحب ( معلم ) لګیادی اوچوکۍ ورته ایښې ده اوهلکانوته دسکول ( مکتب ) سبقونه وایي افسوس دمسلمانانو په حال باندې کورپه کور سکولونه اوښه سهولیات یې هم ورته برابرکړي سره له هغه هم نه پرې مړیږي جوماتونه یې هم ونیول اودیني ښوونې ته دومره پام اوسوچ نشته اوحالانکه چې جوماتونه دقرآنکریم دنبوي حدیثواودمذهبي مسائلو د تدریس ځایونه دي نوجوماتونه هم دقرانکریم ،نبوي حدیثواودمذهب له چوکات نه ووتل نورشیان په کې تدریس کیږي.

له سره دې چې انګریزي کتابونه ماشومانوته وایې نواول دسپې یادخره عکسونه ورته راوړي اوماشومان پرې پوهوي؛نود سپو ،خرو اوغواوو عکسونه نن په جومات کې شروع شول ، دازمونږ دمسلمانانو حال ده ،په هره مدرسه کې د مکتبونو ځانګې ورسره ویل کیږي ،اوداوسنې مکتبونو حال تاسو ته ښه معلوم شو . دمکتبونو خلاف نه یو،ددې خبرې خلاف یو چې نن

مسلمانانو خپل دین پرې ایښی ، له خپل دین څخه ناخبره پاته شول . شپه اوورځ یې ټوله توجه دبې دیني طرف ته واوښتله،اوپه دې بنه ځان پوهول پکاردي چې ددین له لارې پرته کامیابي نشته خداوندمتعال ﷻ فرمایي چې:﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ ﴾ داسلام له لارې نه پرته که نورې لارې څوک مختاره کړي ;نوخدای پاک ﷻ ته قبول نه دي .

نو لږ ددین طرف ته متوجې کېدل پکاردي ،طالب هم خپله دطالبي ژوند بایدوپیژني چې زه په کوم مقصد روان یم، زما لار کومه ده ،دامرتبه چې ماته خدای پاک ﷻ راپه برخه کړې دامرتبه بادشاهان پیداکولی شي اوکه نه ؟

ملاصاحب چې دملائي په ژوندکې په درس اوتدریس کې،په امامتي کې، په فقر اومسکنت کې ژوند تیروي ،هغه هم باید په دغه نعمت پوه شي چې خدای پاک ﷻ ده ته دعزت ژوند ورکړی اوکه دبې عزتي ژوند یې ورکړی ؟ کوم مسلمان چې دیوملا اویا طالب دمدرسې سره تعلق لري ،هغه هم باید په دې پوه شي چې ددې اهل الله اوطالبانو خدمت دعزت لاره ده اوکه نه ؟ په دې کې خطایم اوکه نه ؟

نودنعمت قدر پیژندل پکاردي ،داخر پرخلک به په قیامت کې انسانانو ته پکار راځي : ﴿ الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ ﴾.

دقیامت په ورځ ټول خلک یوله بل څخه بیزاره وي خونیک خلک د خپلو ملګرو اومتعلقینو دوستان وي اوشفاعت به یې کوي.

نودخپلو اولادونو، میرمنو، ورونو اومتعلقینو ددین طرف ته متوجه کول پکار دي چې له خپل دین څخه خبر شي. کله چې له دین سره تعلق پیداشو اوبیا لږ اخلاص هم ورسره مل شو بیا دخدای پاک ﷻ اودرسول الله ﷺ وعدې دي چې داخلک کامیاب دي. اولیاء الله پیش ګویي کړې دي چې داخلک کامیاب دي، بیا مو خدای پاک ﷻ ټول منزل مقصود ته چې دالله تعالی ﷻ رضا دی، رسوي، په دې څوک نه خلاصیږي چې ووایې چې زه خومولوي یم ولې منزل مقصود ته ونه رسیدم، اصل مقصد دالله تعالی ﷻ رضا ده کیدای شي په دمولوي صاحب په نیت کې څه فرق وي دیوبل فقیر اوملنګ نیت صحیح وي هغه ته خدای پاک ﷻ خپله رضا ورپه برخه کړې وي، ډېر مجذوبین دالله تعالی ﷻ په عشق داسې حد ته رسیدلي چې هغه ته خدای پاک ﷻ دکامیابي بشارتونه ورکړي وي، دده په عشق کې یې خپل اولادونه، خپله میرمن هر څه پریښي دي، کور، کلی خپل اوخپلوان ټول یې پریښي وي اودملنګي ژوند یې غوره کړی وي څکه چې اصل مقصد ته رسیدلی وي.

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (۵۸) مجلس

## د کابل د حضرات کرامو دحقانیت یوه حیرانوونکې واقعــه

دمولویصاحب اعظم ګل چې دزرمت ولسوالي اوسېدونکي ده لخوا دسترګو لیدلی حال داخبره ده ،نو مولویصاحب اعظم ګل وایي چې: کېدای شي چې دځلوېښتو کلونودمخه وي ځکه چې په (۱۳۴۷) لمریزکال کې زه فارغ شوم له هغه څخه یوکال دمخه مونږ په نورالمدارس کې اوسېدلونودجناب حضرت صاحب دغو لخواتلیفون راوشوچې دکندهار له طرفه یومیلمه درروان دی چې امریکایي دی اوترجمان هم ورسره ده نوتاسې طالبان ورته رایو ځای کړئ اودخبروموکه ورکړئ دغه امریکایي چې دلته راتلو دی پخپل عیسویت کې سالک صوفي ؤخوده ته په هغه خپله لاره کې څه مشکلات راتلل دنصرانیت په کتابونوکې چې نوموړي هر څومره مطالعه کړې وه نوده دهغومشکلاتودحل له پاره څواب نشوای پیداکولای بل وخت خوب ویني یو څوک یې په خوب کې لېدلی چې هغه خلیفه صاحب عبدالقیوم دنورالمشائخ صاحب خلیفه دی چې دظاهرشاه په حکومت کې یې (۱۷) کاله بندیخانه

هم تېره کړې وه نوپه دې وخت کې دی مبارک له بندیخانې څخه راخلاص شوی ؤچې په پیرمولویصاحب سره یې شهرت درلودداخلیفه صاحب یې په خوب کې ولیده ورته وې ویل چې ته څوک یې؟ خلیفه صاحب عبدالقیوم ورته وویل چې زه په اسلام کې دنقشبندیې طریقې پیریم له هغه نه یې پوښتنه وکړه هغه ورته وویل چې زه په نصرانیت کې یوصوفي یم نودغه امریکایي پوښتنه تربنه وکړه چې ماته داسې مشکلات په دغومقاماتوکې مخې ته راغلي ددغوعلاج اوځواب څه شی دی؟ خلیفه صاحب عبدالقیوم په خوب کې ددغو د حل لاره ورته ښودلې ده اودغه نصراني په خوب کې قانع شوی دی خوچې راویښ شو نوځواب یې له مغزوڅخه وتلی ؤاوسوال یې پاتې دی ده فکرکړی دی چې داخوحرمین داسلام مرکزده نوداسړی به په سعودي کې وي نوفی الحال یې پاسپورټ کړی نوراغلی سعودي ته نوسعودي ته چې راغلی نو سفارت ته تللی یوترجمان یې غوښتی اوویلي دي چې زه دیوه دیني عالم نه پوښتنه کوم هلته چې یوامام دجومات ته ورغلی دی چې پوښتنه یې کړې هغه ترجمان ورسره ده ، غریبړي هغه ورته وایي ته څوک یې؟ نودی ورته وایي چې زه فرنګی یم امریکایي یم دملولان دجزیرې څخه راغلی یم اوزماسره په مغزوکې داسې سوال دی چې دنصرانیت په کتابونوکې ددغه سوال ځواب اودحل لاره نشته ماداسې خوب لیدلی نوهغه ورته وویل چې ښه نوددغه سړي چې ځوابونه یې درکړل څرنګه کیفیت ده ورته ویلي چې پګړی یې په سروه I دجهادله برکتونوڅخه

پولوی برکت داؤچې دنړۍ خلکو افغانستان ورسره وپېژاندکه نه افغانستان خوپه نړۍ کې دېرغریب اوورک نامی وطن ! نوهغوی دافکرکړی چې دالباس خودپاکستانیانوده پاکستان ته ولاړشه نوداامریکایي بیاویزااواخیسته اوپاکستان ته راغی یاپه اسلام اباد یاکراچۍ کې کوزشویدی خوسفارت ته چې ورغلی ترجمان ورسره ده یوه پاکستاني عالم ته ورغلي په یوه ښه عالم وربرابرشوی دی هغه عالم ورته ویلي چې ددغو سوالونوځوابونه دکابل پلازمینې په مربوطاتوکې دشوربازاردسیمې له حضرت صاحبانوپرته له بل چاسره نشته دکابل حضرات مبارکین پنځوس کاله مخکې په شوربازارکې اوسېدل وروسته بیاقلعه جوادته رانقل شویدي هغه دانګریزانوپه وخت کې چې نورالمشائخ صاحب رحمه الله جهادکړی له ټل څخه تر وانه پورې په هغه وخت کې هم دی دشوربازارپه ملاصاحب باندې مشهورؤ نوامریکایي بیاویزااواخیسته اوافغانستان ته راغی نوچې په کابل کې کوزشو په سفارت کې یې پوښتنه کړېده ترجمان یې ورسربیولی دی قلعه جوادته نودامهال ماسپښین قضاوخت دی په دې وخت کې به دحضرت صاحب داستراحت وخت ؤ نوڅه وخت حضرت صاحب مبارک څنډېدلی دی اوهغه امریکایي ته هم دسفارت له خوامعلوم وخت ورکړشوی نوچې کله حضرت صاحب مبارک راوتلی اوروغبرېې سره کړی په دې وخت کې هغه پیرمولویصاحب دقندهارچې ده په خوب کې لېدلی ؤنودهغه چای جوش په لاس کې دی لنګرته ورځي اوچای رااخلي نودامریکایي سترګې

وربانديږ لګېدلي دي اووې ويل چې هغه ماچې په خوب کې
لېدلی ؤهغه خوداکس دی نوهلته يې ساعت ته کتل چې
دامريکايي وخت نور (۱۵) دقيقې پاتې دي نودامريکايي وخت
پوره دی دسفارت خپل قانون وي دخارجي ميلمه په اړه باندې
خوامريکايي ولاړ مانبام چې شولونوپيرمولويصاحب له جناب
حضرت صاحب څخه اجازت واخيستلواودقندهارپه لوري
ولاړسباچې بياامريکايي راغی نوتقريباً (۸) اويا(۹) بجې دي چې
پيرمولويصاحب نشته نوامريکايي ډېرافسوس کړی چې داڅه
کارراوشولو خوحضرت صاحب مبارک ډېره تسلي ورکړې ده چې
خيردی بل هېوادخوندی ويزاته هيڅ اړتيانشته دقندهاراډې ته
چې تللی نو په تېز رفتاره موټر کې سپور شوی او پير
مولويصاحب په (قادري بس) کې سپور و ، نوپه دې وخت کې
حضرت صاحب قندهارته تليفون کړی چې پيرمولويصاحب په لاره
دی، چې دروړسيږي نود رئيس محمداشرف خان ځای ته دې راشي
هلته يوميلمه ورته انتظاردی خودهغه په ځای کې يې سره ليدلي
اوروغبړ يې سره کړی دی ترجمان ورسره دی کله چې امريکايي له
پيرمولويصاحب څخه پوښتنې کړې دي نوپيرمولويصاحب
سمدستي ځوابونه ورکړي دي نوامريکايي سمدستي کلمه وويله
اوداسلام په پاک دين باندې مشرف شونوم يې عبدالله ورباندې
کېښودلومخکنی نوم يې (ډوګن) و .دوه شپې اودوه ورځې له
پيرمولويصاحب سره تم شولطائف يې خلاص کړل او پير

مولویصاحب ددې اجازه ورته وکړه چې که څوک په طریقت کې نوي داخلیږدل نوزماله طرفه درته اجازت دی وظیفې ورکوه.

کله چې بیامدرسې ته راغی جګ سړی دی توره ږیره یې ده غږیدلواوترجمان یې ترجماني کوله نوریې په مطلب نه پوهیدلو ځکه دترجمان په خوله یې دغه توري جاري ووچې تاسې ډېربختورخلک یاست زمونږهېوادترتبولوښه داستراحت اوعیش ځای دی خوله ماسره چې کومې پوښتنې پیداشوې وې دهغوی په حل کولوپسې ماډېرهېوادونه وغوښتل حل نه شوې خوستاسې داغریب اوبې وزله ځای دی چې زمادپوښتنوځوابونه پکې وشول اوزه یولوی روحاني سړی ووم خوزمادروحاني پوښتنوځوابونه دافغانستان ترحقیقي روحاني استاذانوپورې تړلي ووبلکې تردې لوی روحانیت چې الله ﷻ داسلام غوندي لوی روحانیت د افغانستان دروحانیونوپه واسطه راپه برخه کړنوموړی کس ولاړیوکال وروسته دمنهاج (ګهیځ) اخبارنشرېدلوهغه امریکایي ته پیرمولویصاحب لیک ولیږلوچې عبدالله ډوګن ته دې زماسلام ورسیږي اوپه لیک کې داسې توري ورته لیکلي دي چې که ته په ا مریکاکې داسلام شعائر اوفرائض نشې پرځای کولای نودې تاله پاره زمامشوره داده چې ته کوم بل هېوادته هجرت وکړه هغه په ځواب کې ورته ولیکل چې زماشیخ اومقتدا خلیفه صاحب عبدالقیوم ته دې زماله طرفه سلام ورسیږي وروسته له سلامه تاماته لیکلي ووچې که ته په ا مریکاکې داسلام فرائض نشې اداء کولای نوبیابل هېوادته هجرت وکړه دلوی خدای ﷻ په فضل اودې

تاسي حضراتودې توجه په برکت سره ماتراوسه (۷۳) کورنۍ په امریکاکې په اسلام مشرفې کړې دي اوله ماسره یې په طریقت کې هم بیعت کړی اوپه وظایفوکې هم ښه دي زه چې کله دصبح کاذب پرمهال تاته سلام درلیږم نوزماپه زړه کې تجلي پیداشي نوزه پوه شم چې زمامرشدته زماسلام ورسېدلودامکتوب یې په انګریزي ژبه باندې لیکل شوی دلته را ورسېدلو بیاجناب حضرت صاحب په فارسي اوپښتوژبه باندې ترجمه کړ اومنهاج الدین (ګهیځ) پخپله جریده کې نشرکړاومنهاج ا لدین بیالویه تبصره ورباندې لیکلې وه دهغې تبصرې خلاصه داده چې وګوری دمعنویت برکت ته که سره له دومره کراماتومسلمانان بیاهم فیوضات نهویني نویقیناً رانده به وي ددوورځوفرنګی له فرنګیتوب څخه داسلام منوراوروښانه دین ته راواوښتلواوبیایې لطائف خلاص کړل اوبیاپه تجلیاتواوانواروباندې پوهیږي سره له دې چې ددغه ځای صبح کاذب(دروغژن سبا) اودهغه ځای صبح کاذب دلمرپه حساب سره دیارلس ساعته توپېرلري لکه څرنګه چې ویل کیږي [ **اگر در یمنی بامنی** ] دانودانسان ترپاکوالي اوصفایي پورې اړه لري.

**وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین**

# (۵۹) مجلس

## دجنت اوجهنم بیان

یوطرف ته ددې خبرې نه هم ویره لرو چې دتل له پاره مونږخلکوته وعظ اونصیحت کووسره له دې چې دهغه وعظ اونصیحت کولوباوجودپه مونږ کې هم نقصانات اوتقصیرات موجوددي عملونه موکمزوري دي نوسړی وویریږي چې خدای مکړه الله ﷻ مونږ په دې خبروباندې ونه نیسي ځکه زیاتره وخت ډیرې خبرې داسې هم وي چې نفسي خواهشات پکې پوره کیږي دمثال په توګه انسان ته داخپل ځان غټ ښکاره شي داهم دتباهي سبب ګرځي خوکه سړی بل لوري ته وګوري چې خلک په ډیرشوق اوذوق سره له ډیره لري،لري ځایونوڅخه راځي نوبیاسړی ددی امیدوکړي چې کیدای شي الله ﷻ په دې خبرو له مونږ څخه خوشاله شي چې بیاداخوشالي ددواړوجهانونوکامیابي ده.

## دتقواڅه معنا ده؟

تقوا عربي توری دی په معناد‌ډار،پرهیزګاري اوخوف باندې راغلی کله چې یوسړی له الله ﷻ څخه وډارشي نودغه انسان هرومروکمال ته رسیږي اوکله چې یوتن له الله ﷻ څخه وډارشونوپه

ده کې پرهیزګاري پیداکیږي دمثال په توګه که یوطبیب چاته
ووایي چې ستامرض ډېرخطرناک مرض دی که ته پرهیزونکړې
نوکېدای شي ته له مرګ سره مخامخ شې نوهمدغه مریض چې کله
وډارشي نوبیادی خامخا له هغوشیانوڅخه چې طبیب ورڅخه
منعه کړی وي له بیاډېرځان ساتي اوکه طبیب هرڅومره ترخه
دوایي ورکړي بیایې خامخاخوري اوعمل پرې کوي

## د دنیاوي تکلیف د ختمولو له پاره څومره ځان تکلیفوي ؟

ماته یوه نفر قصه کوله چې زمادشوګرتکلیف ده نوطبیب دوه
کیلومرچ راته ښودلي چې دابه په یوځل باندې خورې بیابه
ستادشوګرتکلیف کمیږي دا تریخوالی اویانورتکلیفونه چې په
ځان باندې یومریض تېره وي ددې له پاره چې په مابانديې بوج
رانشي

بل مریض قصه راته کوله چې زمادشوګرتکلیف ؤنوطبیب راته
وویل چې دمرغوني بوټی درته میده کړه اوپکې ودرېږه چې کله
دې تریخوالی خولې ته راورسیده کېدای شي بیابه دې
دشوګرتکلیف کم شي دادومره تریخوالی چې یوکس تېروي اوهغه
خواږه نعمتونه چې الله تعالی دانسان دفایدې له پاره پیداکړي له
هغوی څخه بې برخې وي چې مرض مې زیات نشي همدارنګه یوه
انسان ته شرعي حکمونه مخې ته راځي لکه دمثال په توګه لمونځ

، روژه،زکات،حج ،وصیله ،جهاد اودعلم سفرونه داټول په ظاهره ترخه دي اوبل لوري ته شراب،غلا ،زنا ،درواغ دیوانسان بې ځایه وژنه ،خیانت په مسلمان باندې ټوقې مسخرې کول داټول دطبیعت له پاره خوارږه شیان دي خوکه یوانسان له الله ﷻ څخه وډارشي اودګناووپایله اونتیجه بده ورته ښکاره شي نوبیاهمدغه انسان په شرعي حکمونوباندې په ډېره اسانۍ باندې عمل کوي اوهغه ترخه شیان اوتکلیفونه بیاپه ځان باندې په ډېره خوشالي باندې تېره وي.

## دجنت بیان

که یوتن په ځان باندې دالله ﷻ اوامرعملي کړي اوهغه کارونه چې الله ﷻ منعه ورڅخه کړې له هغوی څخه ځان وساتي نوبیاالله ﷻ نوموړي سړي ته ډېرغوره اوبهترین ځای چې عبارت له جنت څخه دی ورپه برخه کوي اوکه یوتن په ځان باندې تکلیفونه تېرنکړي اوسختۍ تېرې نکړي په کوموشیانوچې الله ﷻ امرورته کړی وي هغه په ځای نکړي اوله کوموشیانوڅخه یې چې منعه کړی په هغوکې اخته شي بیابه یې عاقبت اوپایله جهنم وي خدای پاک دې سړی ترېنه وساتي.

علماوولیکلي چې دتقوایوه ذریعه داهم ده چې یوسړی دعملونوثواب اوعذاب په ذهن کې راولي نوچې دثواب خبره یې په ذهن کې راغله نودی کوشش کوي چې ترسره یې کړي اوچې کله یې دعذاب خبره ذهن ته راغله نوبیادی کوشش ددې وکړي چې

ځان ورځخه وساتي کیدای شي دا انسان متقي اوپرهیزګاره جوړشي.

حضرت عمرفاروق ﷺ وايي چې تاسې ددوزخ اوردپه یادولځ نوبیابه تاسې نه غافله کیږئ اوددنیاپه خوندونوکې دومره ځانونه مه ډوبه وئ چې بیامواخیرت درځخه هیروي جنت ډېرقیمتي ځای اوالله ﷻ دهمدغومسلمانانوله پاره تیارکړی خوچې همدغه مسلمانان په ځانونوباندې تکلیفونه تیرکړي دمثال په توګه لمونځ وکړي،روژه ونیسي ،زکات اداء کړي ،حج اداء کړي،جهادوکړي،دعلم سفرترسره کړي اوله خپلوانوسره همدردي وصیله وکړي دشپې عبادت اودورځې ذکروکړي نوددغو تکلیفونوپه بدله کې به الله ﷻ نوموړي عملي کوونکي شخص ته جنت ورکوي

## په جنت کې به هم بازاروي

حضرت سعیدبن مسیب رحمة الله له حضرت ابوهریره ﷺ سره یوځای شواوسترې مشي یې ورسره وکړه حضرت ابوهریره ﷺ ورته وايي ماته اوتادې خدای ﷻ دجنت په بازارکې سره یوځای کړي هغه ورته وویل چې په جنت کې هم بازارشته؟ نودی ورته وايي هو! ماله حضرت نبي کریم ﷺ ځخه اوریدلي دي چې په جنت کې ددنیادورځوپه اندازه په هره جمعه کې یوه ورځ دبازارده نوله دې ځخه معلومیږي چې هلته شپه نشته ورځ ،ورځ به وي خود دغو

ددنیادورځوپه اندازه دیوې جمعې دورځې په اندازه به دبازارورځ راځي.

حضرت ابوهریره‌ وایي چې ماله حضرت نبي کریم ښخه واورېدل چې صحابه کرامو ته یې بیان کولوچې په جنت کې به دبازارپه ورځ خلک دالله تعالی ﷻ دیدارکوي نوصحابه کرامو ورته وویل چې اې رسول الله مونږته دالله تعالی دیدار هم نصیب کیږي؟ ددوی خیال داؤچې دادومره ډېرخلک چې په جنت کې موجودوي دابه څرنګه الله تعالی ویني یعنې دهغه دیدار به څرنګه کوي مونږدلته یواستاذپه ډېره مشکله سره وینویولوی سړی نشولیدلی دډېرازدحام له وجې ښخه ددوی خیال داؤچې دالله تعالی دیدن به هم په داسې تکلیفونوباندې کیږي لکه په دغه دنیاچې خلک یې په ځانونوباندې تېره وي نوحضرت نبي کریم ورته وایي چې تاسې دلمراوسپوږمۍ په لیدلوکې یوبل ته ضرررسوئ اوکه یه؟ایاتراوسه پورې چایوبل چاته ویلي چې ته لرې شه زه لمرته ګورم اویاپه تاسوکې دایوچابل چاته ویلي چې لرې شه زه سپوږمۍ ته ګورم اوبیاپه ځانګړي ډول هغه مهال چې وریځ نه وي اویادڅوارلسم دشپې سپوږمۍ نوصحابه کرامو ورته وویل چې نه اپه دغه لیدلوکې خومونږ ته هیڅ ډول تکلیف نشته نوحضرت نبي کریم ورته وویل چې الله به دجنت په باغچوخپلونیکوبندګانوته دیدارورښکاره وي په جنت کې به خلکودعملونوپه مطابق دهرچاخپله ،خپله درجه اومرتبه وي دجنت ټولې درجې سل دي اوبیادهرې درجې پخپل منځ کې ترېلې

درجې پورې دومره مسافه ده لکه له یوه اسمان څخه نیو لې تربل اسمان پورې نودمثال په توګه په جنت کې به دیوه سړي پلاروي دیوه سړي به استاذوي دیوه سړي به پیروي اودیوه سړي به نیک ملګری وي خوهغه به هریوپه یوه درجه کې وي نوفاصله به ډېره وي ددې جنتي زړه به غواړي چې له پلار، استاذ، پیر، ملګري سره مې لیدلي وای تردې پورې چې صحابه کرام ﷺ به پخپل منځ کې دیوه اودبل ددیدن تږي وي بلکې دحضرت نبي کریم ﷺ ددیدار تمنی به کوي چې هغه مو لیدلی وای، نوپه همدې موخه باندې الله ﷻ په جنت کې بازارجوړوي طبعاًټول خلک بازارته ځي که دلوړې مرتبې سړی وي اوکه دټیټې مرتبې سړی وي چې هلته دټولو خلکوپه منځ کې لیدنه اوکتنه سره وشي.

کله چې جنتیان بازارته راروان شي نوپردې مهال به رب العزت له جنتیانوسره پرته له کومي واسطي غږیږي صحابه کرام اویانورعام جنتیان چې په جنت کې سره یوځای شي نوناڅاپه به پدوی باندې درب تعالی له لوري غږکیږي اوورته وایي به چې اې زمابندګانو! تاسې له ماڅخه خوشحاله یاست هغوی به په ځواب کې ورته ووایي چې هو! یاالله ﷻ! کوم شی دي چې تامونږته ندي راکړي الله ﷻ به ورته ووایي چې کوم نعمتونه مې درکړي چې تردغه زیات شی درکړم نوجنتیان به ورته ووایي چې اې رب العزت ذاته! زمونږ خوهیڅ شی هم کم ندي نوپه دې وخت کې به الله ﷻ حجاب پورته کړي اوخپلونیکوبندګانوته به خپل دیدار دروښیي دمثال په توګه لکه لمراویاسپوږمۍ چې راوخیژي ټول

جنتيان به دالله ﷻ ديدن وکړي الله ﷻ جسم نلري هلته به دده انواراوتجليات اوذات ليدل کيږي دومره خوندچې دالله ﷻ په ليدنه کې دی هومره خونددجنت په يوه نعمت کې هم نشته له دې څخه وروسته به الله ﷻ يوه بنده ته وايي چې اې زمابنده دې تاپه ياددي چې په فلانکی ورځ دې په فلانکي ځای داګناه کوله داجنتي به ورته ووايي چې ياالله ﷻ! دهغې ګناه ببنه تانده راته کړې چې اوس يې رايادوې جنت خودپاکوخلکوځای دی ګناه کوونکي خوجنت ته نه داخليږي الله ﷻ به ورته وايي چې درته معاف کړې مې ده خوته چې دلته راغلی يې زماپه فضل،رحمت اوکرم سره راغلی يې بيابه الله ﷻ جنتيانوته ووايي چې ځي هغونعمتونوته چې په دنياکې سترګوليدلي نه وو اوغوږونو اوريدلي نه وواودچاپه زړه کې يې تصورتېرشوی نه ووپه دې وخت کې به په مسلمانانوباندې يوه وريځ راشي اوپه مسلمانانوبه دخوشبويي باران وشي لکه دمشکوپه شان خوږبوی به کوي چې هغه ددغوانسانانودبدنونوله پاره ښايست وي چې کله دغه څاڅکي ورباندې ولګيږي دوی به نورهم ورباندې ښايسته شي اوبيابه له دغه ځايه روان شي دبازارلوري ته چې هلته الله ﷻ انعامات تيارکړي دي خوذې خبرې ته موپام چې هلته خرڅېدل اواخيستل نشته لکه ددنيادبازارونوپه شان چې غريب اومسکين څه نشي اخيستلی بلکې هرجنتي ددرزه سره مطابق شی به ورکول کيږي په دې بازارکې به دلويې مرتبې خاوندان اوددوړې مرتبې خاوندان سره يوځای وي اوهرچاته به دخپلې

مرتبې سره سم جامې اونور شيان وركول كيږي چې څومره اخلاص كړى وي هغه خوله هغوخلكوسره چې اخلاص يې كړى برابريدلاى نشي.

## جنتيان چې له بازار څخه خپل كورته ځي نو خپل اهل به يې ورته څه وايي ؟

خوهركله چې جنتيان مجلس سره شروع كړي نود دوارو مرتبودخلكوجامې به الله تعالى ﷻ ددوى په ذهنونوكې دومره ښې وربنكاره كړي چې دهغولويو مرتبودخاوندانوجاموته به يې ورپام هم نه وي څكه جنت خودخپگان ځاى ندى چې ديوچازړه پكې خپه شي كه پام وكړوهلته په جنت كې بياټول خوندونه دي كه ليږتكاليف سړى په دغه نيمگړې دنياكې برداشت وكړي بياچې كله جنتيان له بازارڅخه دكورونوخواته ولاړشي هلته به ددوى له پاره حورې اوهغه ددوى ښځې لاس په سلام ولاړې وي ديوه جنتي له پاره الله ﷻ اويا(۷۰) حورې تيارې كړې چې دهرې يوې به اويا(۷۰) جوړه جامې په تن وي بيابه يې هم هغه دهډوكودننه مازغه ورڅخه ښكاريږي داحورې به ددوى استقبال ته ولاړې وي نوچې كله دوى سره يوځاى شي دانښځې به ورته وايي چې زمونږدې قسم وي په الله تعالى باندې تاسې چې له مونږڅخه جداكېدلى اوس له هغه څخه ډيرښايسته ياست نوداخپل خاوندان به ورته وايي چې ولې به نه ښايسته كېدلوهلته خومونږداسې

یوشی لیدلی چې دجنت په ټولونعمتونوباندې غوره اووچت ژچې هغه عبارت دی له لیدلو درب العزت ﷻڅخه مونږته چې کوم ښایست پیداشوی دادالله تعالی دانواراواوتجلیاتوپه ذریعه باندې پیداشوی دی زمونږچهرې چې دادومره ښایسته دي دادالله تعالی دانواروااوتجلیاتوبرکت دی

## په جنت کښې دادنا جنتي څومره ځای دی؟

په جنت کې الله ﷻدیوه ادنی جنتي له پاره دومره حوري ،غلامان اودومره بنګلې دومره نعمتونه پیداکړي چې که یوسړی زرکاله مزل کوي نوهغه دده نعمتونه به نه خلاصیږي دادنی جنتي له پاره ددنیالس چنده ځای ورکوي هغه هم هغه جنتي ته چې ترټولوزیات ګنهګاروي اوپه دوزخ کې یې ډېروخت تېرکړی وي په یوه روایت کې راځي چې الله تعالی یوجهنمي له جهنم څخه راباسي نودده حالت به ډېرخراب وي په پښواوګنانوبه راښویږي له تګ څخه به وتلی وي اوبدن به یې تک تورلکه دسکروپه شان وي کله چې دی الله تعالی له جهنم څخه راوباسي نوالله تعالی ته به ووایې چې زه اوس چېرته ولاړشم جنت خوټول ویشل شوی دی اوخلکوځایونه پکې نیولي دي نوالله تعالی به ورته ووایې چې څه ولاړشه جنت ته دی چې کله دجنت دروازوته راشي اوجنت ته وروګوري نوجنت به ټول ډک وي نودی به بیاالله ﷻته ووایې چې جنت خوټول خلکونیولی دی نوالله تعالی به ورته ووایې چې په

دنیاکې ژوندې په یاددي ؟ نوموړی انسان به ورته ووایي چې هوکې‌انو الله تعالی به ورته ووايي چې غواړه څه دې په کاردي لکه په دنیاکې دې چې ارمانونه کول وس څه غواړې نوددې انسان دذهن مطابق چې څومره شیان وي دهغوشیانوغوښتنه به وکړي دمثال په توګه حوري اویانورنعمتونه هغومره به الله تعالی ته سوال وکړي چې دومره راکړه اونوربس نوالله تعالی به ورته ووایي چې څومره نعمتونه تاوغوښتل دابه هم درکړم اوددنیاغوندې لس چنده ځای به نورهم درکړم دی به تعجب وکړي چې اې الله‌ته خوزمامالک یې زمارازق یې زماسره توقې کوې ماته په جنت کې ددنیاغوندې لس چنده چیرته راکول کیږي الله ﷻ به ورته وایي چې درمې کړل نوله دې وروسته به په ده باندې جنتیان هغه دجنت اوبه واچوي نودده بدن به ببرته تراوتازه شي اوپه جنت کې چې کله داخلیږي نوخلک به ورته وایي چې داجهنمین دې عتقاء الرحمن دې الله تعالی ازادکړي دې.

## په جنت کې به له یوه ځای نه بل ځای ته تلل په څه وي؟

غرض داچې دجنت دومره نعمتونه دي چې انساني اوبشري ژبه یې له بیان کولوڅخه بې وسه ده خوالله تعالی خپله وایي چې ماجنتیانوته دومره شیان تیارکړي دي چې نه سترګولیدلي اونه غوږونواوریدلي اونه دچاپه خیال اوتصورکې تېرشوي خوداټول نعمتونه دادې الله تعالی دیدار دابنګلې یوه ،یوه خیمه

دملغلروچې شپېته مېله به غټه وي په دايوه اوبل کونج کې چې دده حوري اوغلمان وي دخوشالي خبره خولاداده چې ددنياپه شان خپل منځې اختلافات به هم نه وي اوجنتي چې کله يوې اوبلې خيمې ته ځي اوراځي نودې به په جنت کې په اس باندې سپاره وي اوهغه اس به هم دياقوتوڅخه جوړشوې وي اوهغه اس به وزرې لري چېرته چې دجنتي زړه وغواړي هلته به يې بېې تکليفه رسوي خوډېام ورخبره داده چې داټول نعمتونه داټولې اسانتياوي داچې ديوه نيک انسان په برخه کيږي داهلته چې دالله ﷻ اوامرېې په ځاى کړي وي اوله هغوکارونوڅخه يې ډډه کړې وي چې الله تعالى ورڅخه منعه کړې اودخواږه پيغمبر ﷺ په طريقوباندې يې ځان برابرکړې وي چې ددې ټولوپه ځاى کېدل په تقوا سره لاس ته راوړل کيږي

## دجهنم بيان

انسان بايدښه ځيرشي که يوه لوري ته دالله نعمتونه دي اوجنتونه يې تيارکړي دي خوبل لوري ته که انسان دالله تعالى دحکمونوپرخلاف په يوه بله لاره باندې روان وي اودخواږه پيغمبرحضرت محمد ﷺ طريقې نه پرځاى کوي بياالله تعالى دهمدسې انسانانوله پاره بيادجهنم کندې اودتکليف ځايونه تياکړي دي اوداکنده اوياڼورتکليفونه چې الله تعالى همداسې انسان ته ورکوي داسې مثال لري لکه په دې دنياکې چې ديوه انسان پواندام ليږخراب شي نوبياهغه اندام طبيب ورڅخه

پرېکوي اوهیڅوک یواعتراض غونډې هم نشي ورباندې کولای
یعنې دادنوموړي انسان په باب باندې عدل دی.

## دجهنم داور رنګ څنګه ده؟

حضرت نبي کریمﷺوايي چې :جهنم داسې یوه کنده ده چې که یوغرپه جهنم کې پریوزي نوپه اویا(۷۰) کاله به یې بیخ ته ونه رسیږي دجهنم داورکیفیت داسې بنودل شوی دی چې دجهنم اورزر(۱۰۰۰)کاله بل شونوتک تورشوبیازر(۱۰۰۰) کاله بل شونوتک سپین شو بیازر(۱۰۰۰)کاله بل شوبیاتک تورشو. او اوس هم په همدغه توروالي پاتې دی. په دې جهنم کې چې یوڅوک داخل شوالله تعالی دې سرې ورڅخه وساتي نوداسې لوږه به ورباندې راشي چې دادې اورعذابونه اوتکلیفونه به یې تول له ذهن څخه ووزي په جهنم کې به جهنمیان خوراک وغواړي نوددوی له پاره به خوراک ضریع اویازقوم ورکول کیږي.

حضرت نبي کریمﷺفرمايي چې : قوم داسې ونه ده که یوه څاڅکی یې دغې دنیاته راتویه شي نودیوه څاڅکي له بدبویي څخه به ددې دنیاټول خلک په عذاب شي نودازقوم چې یوه ازغي لرونکې ونه ده ډېرې لوړې له وجې به یې نه شي پرېښودلی خوري به یې خوکله یې چې خوري نوپه ستوني کې به یې ونښلي نونه به تیریږي نوده ته به وربه یادشي چې په دنیاکې خوبه چې کله زمونږپوشی نه تېرېدلونواوبه به موېسې وڅښلې بیابه تېرشونوبیابه ده ته داسې ګرمې اوبه داوسېني په جګونوکې

راوړل شي لکه الله تعالی چې وايي ﴿ وَسُقُوا مَآءً حَمِيمًا ﴾ کله چې داګلاس داوبو دخولې لوري ته راپورته کړي نودمخ پوستکی به کوزېه اوبو کې ولوېږي خوبيايې هم دمجبوري له وجې څخه نشي پرېښودلی څکه هلته يې په ستوني کې زقوم اوضريع نښتي وي خو کله چې اوبه خولې ته کړي نودااوبه په بدن کې دننه ولاړې شي نوبدن ورسره خوړنيږي تردې چې کولمې لاندې طرف ته تويي شي اوپه بل روايت کې راځي چې داګرمي اوبه يې په سرورتويي کړي نودسر پوستکی اوټول وجود غوښې به خوړنې شوې،دا اوبه به يې تر پوندو پورې ټول بدن خوړين کړي ، داګرمې اوبه به ددوی څښاک وي اوددوزخيانوهغه ويني اوزوونوبه ددوی څښاک وي هغه کمه اندازه دعذاب په جنهم کې داده چې په يوه روا يت کې راځي چې دهغه دپوندو په هغه کړيو،کړيوڅايونوکې به داورسکروټې وي ددغوسکروټوله وجې به يې په سرکې مازغه خوټيږي

## دادنا جهنمي څومره عذاب ده؟

په يوه روايت کې راغلي دي چې څېلی به يې داورپښوکړې وي هغه لېږعذاب په جهنم کې دحضرت نبي کريم ﷺ دتره ابوطالب دی چې له حضرت نبي کريم ﷺ سره يې ډېر ساري ښېګړې کړې دي خوافسوس چې اسلام يې قبول نکړله دنياڅخه کافرتهرشو نودهغوښېګړوله وجې چې له حضرت نبي کريم ﷺ سره يې کړې وي

چې کافران به يې نه پرېښودل چې په حضرت نبي کريمﷺباندې ظلم زوراوپازياتی يې کړی وای تردې پورې چې په کوم کال دی مړشو اوپه همدغه کال حضرت خديجة الکبری رضي الله عنها هم وفات شوه هغه کال ته دغم کال ويل کيږي چې په حضرت نبي کريمﷺباندې دومره زيات غم راغی چې دقريشودمشرکينوله ډېروعذابونوڅخه ده مبارکﷺمکه مکرمه پرېښودله اودطايف په لوري روان شواودطائف مشرانو ته چې ورغی اوپناه يې ورو‌ړه هغوی خپلوتابعدارانواوکشرانوته وويل چې په ډبرويې ولئ نوچې ده مبارکﷺبه قدم پورته کولو هغوی به په ډبروباندې ويشتلودده مبارک ﷺپه غوږګوباندې وينې راروانې وې اوله ډيروتکليفونو څخه به زمکه باندې پريوت اوخپلې پښې به يې پټولې دی مبارکﷺوايي چې زه چې طائف ته راغلم زه په لاره باندې نه يم پوه شوی چې زه کوم ځای ته ورسېدم دغه دغم کال دابوطالب دوفات په کال باندې ؤ چې کافرانو زړورتياومونډله خودحضرت نبي کريمﷺدخدمت په خاطرباندې چې رحمة للعالمين دی کافرته يې هم دومره فايده رسيږي چې دهغه عذاب په جهنم کې دنورو کافرانوڅخه ډېرکم اوليږدی بياهم دومره عذاب دی چې په ځپليو کې به يې اوروي اومازغهٔ به يې ورڅخه خوټيږي.

## دجهنمي وجود به څومره وي؟

اوپاتې شوه داخبره چې ديوانسانٔ ټول بدن په اورباندې سوځي دابه لاڅومره زورغواړي کتابونه ليکي چې دکافرداپوستکی به

دوه ځلویښت (۴۲) ګزه غټ شي یوغاښ به یې داحدغره په شان لوی شي اودده هغه دکیناستلوځای (عورت غلیظه) به دومره غټ شي چې مسافه به دومره وي لکه دمدینې منورې اومکې مکرمې ترمنځ چې څومره مسافه ده اوپه یوه ورځ کې به یې بدن اویازره (۷۰۰۰۰) واري سوځي اواویازره (۷۰۰۰۰) واري به بېرته راشين کیږي نوګرانوورونو اکه پرهیزونکړو اوله ګناهونوځخه ځان ونه ساتوبیابه الله تعالی مونږته همدغه سخت ځای په برخه وي اللهﷻ مودې ورڅخه وساتي نویوانسان ته مناسبه ده چې لیږسوچ وکړي خوشی انسان ندی پیداشوی دانعماتوتصور اودحورو تصوراوله دې سره ،سره داللهﷻ دجهنم دعذابونو اوتکلیفونو تصوردې هم کوي.

دمثال په توګه مونږاوتاسې چې دنیاوي ګټې وینوچې یوڅوک یې راته کیسې وکړي چې په دوبی کې دومره ګټه ده یاپه لندن کې دومره ګټه ده یاپه امریکاکې دومره ګټه نوطیاره اوکشتۍ خوپریږده په پښوهم هغوځایونوته ځانونه رسووبلکې ځانونه پسې وژنودپرځله موداسې اوریدلي چې لندن اویانورو هېوادونوته چې خلک په لارې باندې مړه شول دریابونوته ولویدل حتی ښځې له محرمه پرته خې اوپه لاره کې مړې شوې دي اویادمثال په ډول دلته څومره سخته ګرمي ده سره له هغې هم بیاډېرخلک له سهاره تربیګاه پورې ولاړوي اوګټه کوي نوکه یوڅوک دافکروکړي چې ماته جنت اویاله هغه څخه هم ښه توښه په لاس راځي نوبیاخوبایدپه نیکوعملونوکولوکې ډېرزیات کوشش وکړوکه

یوڅوک داسې فکروکړي چې که زه له ګناهونوڅخه ځان ونه ساتم ګناه کول خودزهروخوړل نوبیابه زماځای جهنم وي اوزه به پکې سوځول کېږم خامخابه دی له ګناهونوڅخه ځان وساتي.

حضرت نبي کریمﷺوایي ماچې په جنت کې ولېدل نوپه جنتیانوکې زیاتره خلک فقیران ووا وپه جهنم کې مې چې ولیدل نوډېرخلک یې هغه ښځې دي چې ددین له کارونوڅخه ناخبره دي بل قول دادی چې په جنت کې به ډېری خلک کمزوري وي [مدفوع بالباب لواقسم علی الله لابره] که په خدای باندې قسم وکړي نوخدای پاک به یې په ځای کوي دغه خلک به ډېرجنت ته داخلیږي اودجهنم داخلېدونکي به ډېرهغه څوک وي چې دهغوی نښې حضرت نبي کریمﷺښودلې دي عتل جواز متکبر هغه څوک چې ددوی زړونه سخت وي هغه څوک چې ددوی په زړونوکې کلکوالی موجودوي غلیظ القلب جافی ظالم وي داخلک به ډېرپه جهنم کې موجودوي جموع اومنوع هغه خلک چې جمعه کول کوي ددنیا خودالله ﷻ حقوق نه پکې اداء کوي اوکبرجن خلک چې غټه یې وایي اوځان لوی ورته معلومیږي دابه په جهنم کې ډېرلېدل کیږي خودافسوس خبره داده چې هره جمعه بیانات کیږي اوهره جمعه ژړاوي وي خودخلکوپه وجودباندې اثرات نه ښکاریږي که یوه ملایوه دنیوي ګټه بیان کړې وای چې په فلاني ځای کې په یوه ساعت کې (۱۰۰۰) روپۍ ګټل کیږي نوقسم درته کوم چې ځانونه ښځي اولادونه به یې ټول ښه په شوق باندې په ښه تېزه ګرمي کې درروان کړي ووځکه هلته دمثال په توګه (۱۰۰۰) روپۍ ګټه ورته

پیداکیږي بیاخپل عزت تړینبولاندې کوي خوددنیادالیږګته ترلاسه کوي دمثال په ډول داخوکه یوه ملاصاحب د(۱۰۰۰) روپوکلدارودګټې بیان ورته وکړکه فرض یې کړه یوملاصاحب داورته وایي چې په فلانکي ځای کې (۱۰۰۰) ډالره ورکوي نوبیاخوبه ملاصاحب اوحاجي صاحب خپل ناموسونه اوخپل هغه تنکي ګران اولادونه چې لمریخني اوګرمي یې نه وربانديې لوریږي تول به پښې لوڅې ورروان وي اوددغې فاني دنیادګټې خبرې په زړونوباندې اثرهم زرکوي اوکه یو ملاصاحب دجنت اوجهنم بیان کوي نومخونه په بل طرف ورځخه واړوي اوهیڅ اثرنه ورباندې کوي اوزړونوته یې نه لویږي.

## ددنیایي ګټې په لحاظ دعلماوو خبره هم زراوړبدل کیږي

دمثال په ډول دلته دقوم خلک سره راټول شول اودیوه دود(رواج) په باره یې خبره کوله نومونږهم په دعاکې ورسره شریک شوونن چې خلک وینوډېروخلکوپه ځان باندې عملي کړېده ځکه چې ددنیاګټه یې پکې لیدلې ده اوبیان داسې کوي چې داخبره خوخلیفه صاحب کړې مثلاً چې لوراویاخورته پنځلس جوړه کالي مه ورکوه پنځه جوړه کالي ورکړه داخبره مني ځکه دنیوي ګټه یې پکې ده اوچې ورته ووایې چې ډیره پریږده داخبره بیانه مني ځکه دنیوي تاوان یې ده پکې بلکې ددنیاتاوان یې هم شته پکې خوداللهﷻ دخوشاله کولوپرخلاف دیوه بنده دخوشالي

هغه اوکوشش کوي عجیبه خلک دي وايي چې خلیفه صاحب ویلي دي چې په واده کې خوړه مه ورکوئ ځکه په دې کې بې عزتي راځي اوهغه چې ډومان راولي اویاخپلې ښځې په بازارونوکې لوڅ مخ ګرځوي هغه بې عزتي نه بولي ځکه په خوړه ورکولوکې یې دنیاوي تاوان دی روپۍ لګیږي ماپه هغه ورځ باندې هم دې خلکوته وویل چې ماته له الله تعالی څخه حیاراځي په دې شرط به زه درځم چې جنکۍ ته به شل اویادپرش زره روپۍ نغدې ورکوئ ځکه دجنکۍ خوبه لیږي کارورباندې وشي څه ناڅه حق خوبه یې راژوندی شي ځکه داښځې بیادخسرپه کورکې روپۍ نلري اوعلاج دمرض اویایوبل شی ځانته نشي اخیستلای خوداخبره بیانه منل کیږي ځکه ددوی دنیوي تاوان دی پکې نوپه کومه خبره کې یې چې دنیاوي ګټه وي هغه خبره مني اوبیاوايي چې خلیفه صاحب ویلي دي مونږیې په خبره باندې عمل کوواوهلته دالله ﷻ خبره نه مني دخلیفه صاحب خبره مني ځکه دنیوي ګټه پکېویني دحضرت نبي کریم ﷺ خبره نه مني نوکه په یوه دنیاوي ګټه کې ورته تاوان وي بیاوايي چې داخوفلانکي عالم یافلانکي خلیفه صاحب ویلي دي که یې ونه منوبیابه مونږ ته تاوان ورسیږي جهنم ته به داخل شو اوهغه خبر چې په قرآنکریم اویانبوي حدیثونوکې راغلي هغه نه مني.

دمرشددخولي خبره ده هغه وايي چې ماته یقیني دسرددردتکلیف پیداشوی دی چې دومره ډېردرسونه اوبیانونه دي اخیرسړی په دې باندې وډارشي چې دازمونږخبره اثرولې

نکوي چې خدای مکړه مونږبې لاري یوکه په مونږکې دخدای ﷻ څخه ویره اوډارنشته چې سره له دومره زیاتوبیانونوبیاهم په خلکوکې اثرنه لېدل کیږي.

له ډیري څخه ماسړی نیولی چې دادخواره پیغمبرحضرت محمد ﷺ سنت طریقه ده نوډیره پرېږده خوداخبره څوک نه مني ډېرمجلسونه فایده نلري علماء کرام وایي علم دمالګې په اندازه اوعمل داوړوپه اندازه نوعلم به هلته سړي ته فایده کوي چې عمل ورباندې وکړي اوکه یوکس علم لري اوعمل نه ورباندې کوي هغه هم امکان شته چې جهنم ته ولویږي لکه په حدیث شریف کې چې راځي چې په ورځ دقیامت به عالم،شهید،اوسخي جهنم ته واچوي اودجهنم اوربه په دوی باندې تازه کیږي ځکه چې چاعلم دخدای ﷻ له پاره نه وي کړی اوچاشهادت دخدای ﷻ له پاره نه وي نوش کړی اوچاسخاوت دخدای ﷻ له پاره نه وي کړی که څه هم پنځلس ځله ځان مخته ،مخته کړي چې مادمدرسې حق پرې کړی ته به وایې چې دده له پاره یې ورکړی.

اې مسلمانانو! دادین یوازې دملاندی یوازې دخلیفه ندی یوازې دپیغمبرندی بلکې دادین دالله ﷻ دی له الله ﷻ سره چې څوک دوستي غواړي نودین به خپلوي په دین باندې سړی عزتمند کیږي هم اوبې عزته کیږي هم نوکه موپه دین پورې لاس ونیونوعزتمند کیږوبه اوکه موله دین څخه لاس واخیستلونوبې عزته کیږوبه جنتونه اودوزخونه ټول په دغه دین پوري تړلي دي که چادین خپل کړنوجنت به یې برخه شي اوکه یې له دین څخه لاسونه

واخیستل نو د دوزخ کندو ته به ورغورځول شي تو مونږ ته دا مناسبه ده چې یو تقریرو اوږونو په هغه باندې باید عمل و کړو.

صحابه کرام ﷺ خو عرب وو قرآنکریم به یې ویلو خو لیږ، لیږ لکن عمل یې ډېرور باندې کولو کتابونه لیکي چې حضرت عمر ﷺ یو سورت بقره په دوه نیم کاله کې ویلی دی هغه داسې چې هر حکم به یې په ځان باندې عملي کولو هغه مبارک به ویلي چې ماته له الله ﷻ څخه حیا راځي چې قرآنکریم وایو او عمل نه پرې کوو نو خبرو او تقریرونو ته باید په دې نیت کینو چې عمل ورباندې و کړو.

**وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سید نا وسند نا وشفیعنا ومولا نا محمد و علی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین**





## (۶۰) مجلس

## دانسان ستردښمن اوله هغه څخه دځان ساتني طريقه

دروژې په فضائلوکې يوه وجه داهم ښودل شوېده چې په روژه کې دادومره زيات ثوابونه چې الله ﷻ ايښي دي داپه دې وجه باندې چې دروژې په واسطه باندې زمونږاودالله ﷻهغه ستردښمن چې عبارت له شيطان څخه دی هغه پکې مغلوبه کيږي شيطان چې دادالله ﷻ دانبياوواوددين دښمن دی همدغه ملعون چې کله الله تعالی له خپل دربارڅخه ورټلوچې حضرت ادم ﷺته يې سجده ونکړه نودې رټلي شيطان په هغه ځای کې قسم کړی چې اې دټول عالم پالونکيه! زه به دې تابندګان سمې لارې ته نه پرېږدم دوی به زه له ښي لوري له چپ لوري دمخ له لوري دشاله لوري ورځم اوله ښيې لارې څخه به يې دبې لارې لوري ته کشکوم.

خوهمداشيطان په يوه انسان باندې هلته ډېرزيات غالبه کيږي چې کله ديوه انسان خواهشات پوره اوقوت پکې وي له همدې وجې خوپه يوه روايت کې راځي چې شيطان دانسان په بدن کې داسې سرايت اوجريان کوي لکه وينه چې په بدن کې روانه وي نوحضرت نبي کريم ﷺوايي چې :تاسې دشيطان لارې په لوږه سره

تنګې کړئ څومره چې يوانسان موړوي نوبياشيطان ښه تګ اوراتګ پکې کولای شي څکه دمړوالي پرمهال رګونه ازادشي اوچې کله يوانسان وږی وي نوبيادده دتګ اوراتګ لارې تنګيږي.

ددې مطلب داندی چې انسان ديوه حسي شي غوندې ننوزي بلکې چې کله يوانسان موړوي نودشيطان لارې ازادې اوخلاصي وي اوچې کله يوانسان وږی شي نوبياکمزوری شي نوداانسان ستومانه شي نوشيطان ته موکه نه برابريږي.

همداوجه ده چې الله ﷻ خپل پيغمبرحضرت داؤد ﷺ ته وايي ﴿ عادي نفسك فانه قام بمعاداتی ﴾ ترجمه: اې حضرت داود ﷺ له ته خپل نفس سره عداوت (دښمني) کوه څکه چې هغه زماپه دښمني باندې ولاړ دی نفس اوشيطان دادواړه دالله ﷻ دښمنان دي نودنفس خواري اوذلت دادشيطان دذلت اوخواري سبب ګرځي نوڅومره چې نفس اوشيطان ذليل کيږي دومره الله تعالی ورباندې راضي کيږي څکه دالله تعالی دښمن تاخفه اوذليل کړ دښمن ددښمن په لاره نه ځي دښمن د دښمن په مشوره باندې عمل نه کوي څکه يوله بل څخه داريږي

اوپه بل ځای کې راځي چې شيطان دې تاسې هغه دښمن دی چې له تاسې څخه يې جامې ويستې حضرت ادم اوحضرت حوا ﷺ په جنت کې دنورپه جامو باندې پټ وو خودشيطان دوسوسې له وجې چې دوی هغه دانه وخوړه نوهغه دنورجامې له دوی څخه لرې شوې ددوی عورتونه يوبل ته ښکاره شول اوشروع يې وکړه دجنت دونوپاڼې يې راشکولې اوپخپلوځانونوپورې يې ننښلولې چې

عورتونه يې ورباندې پټ شي نوځکه الله تعالى وايي چې شيطان دې تاسې هغه دښمن دی چې ستاسو دمورا وپلار جامې يې ايستلې دي نو دهغه تول کوشش اوهڅه داده چې يوښکلی ا نسان دې تل له پاره بې پته اوبې عزته کړي.

لکه په جنت کې يې چې په حضرت ادم اوحضرت حوا (رضی الله تعالى عنها) داوس ورسيدلوچې له دوی څخه يې جامې ويستلې هغه ظاهرعورت يې ورښکاره کړهمدغسې شيطان دانسان تول عيبونه رالوڅوي کوشش, کوي چې دغه انسان دومره ذليل کړي چې دالله ﷻ په نزدباندې هم وشرميږي دانبياووپه نزدباندې هم وشرميږي اودنيکوخلکوپه نزدباندې هم وشرميږي تردې پورې چې په پای کې دلعنت وړوګرځي.

دومره يې په ګناهونوکې رسواکړي چې تول مخلوق په ده باندې لعنت وايي ولې داانسان دومره له حده زياته بې حيايي پيل کړي دمثال په توګه که يوڅوک په يوه مجلس کې شريک وي اوکالي وباسي نودهغه مجلس ګډون کوونکي به تول په نومورې انسان باندې لعنت وايي چې داڅومره بې شرم اوبې حياانسان دی چې په لوی مجلس کې په ښکاره باندې دشرم ځايونه لوڅ کړل همدارنګه شيطان چې کله په يوه انسان باندې ګناه کوي،نوداعين په همدغه انسان باندې جامې ايستل دي ګوری چې دې خبرې ته موپام وي که څه هم داګناه کوونکي هغه ظاهري جامې اغوستې وي خوهغه ايماني جامې هغه نوراني جامې چې دې تقوا اوپرهيزګاري جامې دي هغه ورڅخه باسې نوپه حقيقت کې

ګواکې لوڅ اولغړوي ددې دنیاشرمېدل خوپرېږده په اخیرت کې به هم نوموړی انسان درسوایي په حالت کې راپورته کېږي.

نودشیطان ټول کوشش اوزیاردادی چې یوعزتمندانسان بې پته اوبې عزته کړي دادنیادازمویېنت ځای دی الله تعالی دومره مهربانه دی کله په یوانسان باندې لوړه راولي په هغه کې دالله ﷻ مقصددانسان کمال وي بې عزته کوي یې نه ځکه دده دلوړې په واسطه باندې شیطان خپه کېږي اودی ورباندې غالبه کېږي اوکله الله ﷻ مړینت ورباندې راولي هغه هم ددې له پاره وي چې موړشه اووس نوښه عبادت وکړه الله تعالی ﷻ خوشاله کړه اودشیطان مقابله ورباندې وکړه په سجدوباندې سرشه غافله کېږه مه نوالله تعالی احکام ورته متوجې کړې چې دغه وکړه دغه وکړه اوچې په دې یې هم علاج ونشي بیایې الله تعالی وږې کړي چې وس په دغه لوږه باندې دشیطان مقابله وکړه.

دانسان اصلي دښمن نفس اماره دی ځکه هغه په بدیو اوبدمرغیوباندې امرورته کوي نودانفس اماره اوشیطان دواړه کوشش کوي چې انسان بې لارې کړي نوکله ،کله داسې وشي چې یوانسان خپل ځانته غره کړي په ظاهره باندې ځان صوفي ،صوفي کوي روژې نیسي اوتقواکوي ده ته داخپل ځان متقي ښکاره کېږي په واقعه کې هلته دشیطان ودنفس په جال کې لویدلی وي داسې هم نده چې یوازې روژه سړي ونیوله اووږی شو نوشیطان به نورمغلوبه کېږي کله ناکله دسړي ورېام هم نه وي شیطان دهغې لارې ځخه دانسان بدن ته ننوتی وي چې سړی ورباندې پوهیږي هم

نه اوداشیطان داسې حرکت کوي لکه دمېږتون په شان باندې چې څوک یې څرېې نه اوري اودی خپله لاره وهي نوشیطان دانسان له پاره دتل له پاره په کمین کې ناست بایدانسان ډېرورته خیراوبیداره وي.

## د نفس په خلاف عمل اختیارول

یوولي الله چې په ډېرفقراومسکنت یې خپل ژوندتېرولو خویوځل خپل نفس ته متوجې شونوداخپل نفس ډېرقوي اومزی ورته ښکاره شونودادې الله تعالی نازولی داخپل نفس ته خطاب کوي چې اې نفسه! ته خوماداسې ساتلی هم نه یې نه مې ښه خوراکونه درکړي اونه مې داسې ښه دڅښلوشیان درباندې څښلي نوبیادادومره غټ اومزی په څه شي باندې شولې نونفس یې ورته وایي چې زه په دې باندې نه مزی کیږم چې ته ماته ښه خوراکونه راکړي اوښه لباسونه راواغوندې بلکې په دې باندې زه ښه مزی کیږي چې تاته خلک وایي چې صاحب ،صاحب اوخلک درته کته اوپورته کیږي اواحترام دې کوي نوزه ښه مزی کیږم نودې ولې بیایوه داسې عمل ته پاملرنه وکړه چې دخلکوتوجه ورڅخه واوړي هغه عزت اواحترام یې له منځه ولاړ نوبیاله هغه وروسته ښه خوراکونه اوښه دڅښاک په شیانوباندې پیل وکړبیاچې کله خپل نفس ته متوجې شوخپل نفس یې چې ولیدچې ډېرکمزوری شوی یعنې له کاره لویدلی دی نوبیایې له نفس څخه پوښتنه وکړه چې

وس خودې ښه هم ساتم اوسره له هغه بیاته ولې کمزوري اوله کاره لویدلی یې اوډېرډنګرشوی یې نووایې نفس په خوب کې راته وویل څوک چې خپل دښمن ته حال وایي دهغه به همداحال وي لکه دازماته خودنفس اولنی دښمن یې.

کله انسان دلوړي په حال کې داسې وي چې ځان به ورته ښه لیدل کیږي نوپه دې ځای هلته شیطان پټ کوشش شروع کړی نوپه یوداسې کاربانديې داسې لګیاکړي چې دده به له سره ورته پام هم نه وي چې څوک یوشاباسې ورکړي اویاورته جګ اوټیټ کیږي نودی سخت ورته خوشحاله وي.

دنورومخکنیواولیاء کرامووواقعات چې سړی وګوري نوهغوی دتل له پاره داکوشش کړی وي چې ددوی نوم پاته نه وي اونوم یې ورک وي اوشهرت نه خوښوي زیاتره اولیاء کرام به چې په کوم ځای مشهوره شول نوپه داسې یوکاربه یې پیل وکړچې هغه شهرت به له منځه ولاړشهرت هم یوافت دی چې سړی ډېر مشهورشو نوځانته یې پام نه وي اودی په ګمراهي باندې لګیاوي لکه دحافظ شیرازي واقعه چې مونږ مخکې ذکرکړېده اوبله واقعه چې دیولوی بزرګ مونږذکرکړې چې ده ته یې دباچایوه ښایسته لورپېرېښوده هغه مکمله ذکرده وګوری.

نودهغوی به په لوی لاس داسې عملونه کول یعنې خپل زوی کینول دځان سره اویاخپله مینځه کینول دځان سره اویاسورکه ایښودل دځان سره داخوځه ګناه نده خوددې له پاره چې دشیطان اونفس مقابله یې کوله شیطان داسې ندی چې له یوې لارې سړي

ته ورځي چې روژه موونیوله نورشیطان ولاړختم شو کله به داسې
وي چې سړی به ښه دفقرپه جامه کې وخت تیروي خوهلته به
شیطان ورباندې مقرروي اوکله به یوسړی دابادي په جامه کې
وخت تیروي خوشیطان به ورباندې مقرروي کله به یوسړی
دصوفیتوب په جامه کې وخت تیروي خوشیطان به ورباندې
مسلط وي اوکله به داسې هم وي چې یوسړی به دعلم په جامه کې
وخت تیروي خوشیطان به ورباندې مسلط وي اوکله به یوسړی
دجهاداوسفرپه عنوان وخت تیروي خوشیطان به ورباندې مسلط
وي له همدې وجې خوالله ﷻ وایي چې شیطان دې تاسې دښمن دی
اوتاسې یې په دښمني ونیسئ ددښمن هرتکتیک اوهرفریب ته
متوجې شئ ددې له پاره چې له تباهي سره مومخ نکړي

په دې طریقت اخیستلوکې هم مقصدداده چې ډېرکوشش
انسان داشروع کړي چې له نفس سره مقابله وکړي ډېرکوشش
انسان داشروع کړي چې له شیطان سره مقابله وکړي

## یومولویصاحب عجیبه عمل کړی

یوه مولویصاحب په یوه جلسه کې په جوش باندې لګیاؤ
دتقریرپه منځ کې ناڅاپه کیناست نویوه خلیفه صاحب پوښتنه
ورځخه وکړه چې دادې څه وکړل؟ نوده په ځواب کې ورته وویل
ماچې کله تقریرشروع کړاوښه جوش راغی نوپه زړه کې مې
داراوګرځیدل چې خلک به وایي چې فلانی عالم څه په جوش

اوخروش سره تقريرکوي نوزه سمدستي پوه شوم چې دادشيطان حرکات دي نوسمدستي کيناستم چې والله که دې ومنم نودادطريقت فايده ده ځکه هغه مولويصاحب دهمدې خليفه صاحب روزل شوی سړی ؤنوپه طريقت ،شريعت اودين تولوکې مطلب داده چې سړی نفس ذليله کړي اوعاجزي غوره کړي اولويې له منځه يوسي نوپه معامله کې به د ا لله ﷻ سره مخلص شي دمثال په توګه که لمونځ ده اوکه روژه اوکه علم کول دي اوکه جهاددی بلکې که هرنيک عمل دی بايدپه دې کې يوازې اويوازې دالله تعالی ﷻ رضامقصدوي . دخدای ﷻ رضاکول عين دشيطان ذلالت اودهغه خفګان دی په کوموعملونوکې چې اخلاص وي هلته کاميابي هم وي ځکه خوالله تعالی چې په مخلصو بندګانوزمابانديې دشيطان وسه هم نه رسيږي ايت شريف دی ﴿ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ شيطان وايي هغه بندګان چې ستا مخلص دي په هغوی باندې زماوس هم نه رسيږي پاتې شول هغه انسانان چې په عملونوکې يې اخلاص نه ليدل کيږي هغه بيانه پريږدم ګمراه کوم يې له ښه خوراک اوښه ښباک څخه خومونږالله تعالی نه منعه کوي چې نيت موبرابروي اوخدای ﷻ راڅخه خوشاله وي ښه خوراک ښه ښباک اوښې جامې به ولې نه اغوندو.

## صحابهٔ کرام‌﷜ د حضرت نبي کریمﷺ د نفلي عباداتو پوښتنه کوي

صحابه کرامو﷜یوځل دحضرت نبي کریمﷺلورته راغلل اوپوښتنه اودهغه پوښتنه یې وکړه چې هغه دشپې څه ډول عمل ترسره کوي اودورځې څه ډول عمل ترسره کوي ددوی خپل ګومان داؤچې پیغمبرﷺبه ټوله شپه په نفلوباندې تیروي خوب به نکوي دتل له پاره به نفلي روژې نیسي ځکه خودېره وچته مرتبه لري نودحضرت پیغمبرﷺدکوروالوچې دحضرت محمدﷺحال ورته وویلونوددوی په ګومان کې هغه ددوی تراندازې کم ورته ښکاره شو چې زمونږخوداګومان ووچې حضرت پیغمبرﷺبه ټوله شپه نفلونه کوي نوحضرت پیغمبرﷺخوټوله شپه نه تېروي ټول وخت خوروژې نه نیسي نوصحابه کرام﷜خونیک خلک نوبیایې وروسته پخپلومنځوکې سره وویل چې زمونږاودحضرت پیغمبر ﷺ ترمنځ خوډېرتوپیردی هغه ته الله تعالی هرڅه معاف کړي مونږ بایدکوشش وکړو یوه صحابي ﷜وویل چې په ماباندې له دې هیسې ښځه حرامه ده زه به خپلې ښځې ته نه ورنیږدې کېږم بل صحابي مبارک وویل چې په ماباندې له دې هیسې ښه خوراکونه حرام دي زه به ترکاري اولندې ډوډۍ ونه خورم بل صحابي مبارک وویل چې زه به نوره دتل له پاره روژې نیسم مختلفې مشورې وشولې تردې پورې چې ځینوصحابه کرامو﷜دامشوره وکړه چې

مونږ به خپل ځانونه خصیان کړوچې دادشهوت ماده په مونږ کې بالکل له منځه ولاړه شي په دې خبره باندې دالله ﷻ خوږپیغمبرخبرشو نوورغی اوورته وې ویل چې تاسې داخبرې کړې دې هغوی ورته وویل چې هو! نوحضرت محمد ﷺ ورته وویل چې والله زه ترتاسې له الله ﷻ څخه ډېرویرېږم خوزه خوب هم کوم نفل هم کوم کله روژې نیسم اوکله یې خورم اوزه له خپلو بیبیانوسره کوروالي هم کوم اوعفت هم کوم داشیان خوالله ﷻ حلال کړي دي.

یوځل له شهدوڅخه حضرت نبي کریم ﷺ قسم وکړچې نه به یې خورم سمدستي الله تعالی وحیې ورته رانازله کړه چې ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَ ﴾ ترجمه: چې الله تعالی درته حلال کړي وې نوته یې ولې په ځان باندې حراموې داسې نده چې ښه جامه به نه اغوندې اوښه خوراک به نه کوې هرڅه ښه کوه خودالله تعالی ﷻ شکراداءکوه بلکې الله ﷻ په دې باندې ډېرخوشحاله کېږي چې یوچاته الله تعالی نعمت ورکړی وي اودی اظهاروکړي که سړی دشیطان له فریبونوڅخه غافل نشي نوپه روژه کې هم اصلاح دنفس راځي چې مونږخپل اندامونه په سمه لارباندې وکاروو نوبیابه الله تعالی په لوړه باندې هم راته اجراکوي بیابه الله تعالی دروژې نیولوپه واسطه باندې زمونږدښمن شیطان مغلوبه کوي اوکله چې شیطان مغلوبه شي نودغه لوی مقام دی بیاالله تعالی زمونږبه عبادتونوکې کومک،مرسته اونصرت کوي.

## دتوبې ایستلوفضائل

کله چې یوانسان خپلې ګناوې رایادکړي اوداخیرت لوري ته متوجې شي اوتوبه وباسي داشوق اوذوق به څرنګه پیداکیږي اوبیاچې کله توبه وباسي نوددې توبې ایستلونوموري انسان ته څومره ګټې رسیږي داخیرت په ورځ یوه توبه کوونکي انسان په دې دنیاالله تعالی ته ژړلي وي الله تعالی ته یې ګریوان شکولی اوپه اخلاص توبه یې ایستلې وي څومره ګټه ورته کوي په دنیاکې دتوبې ا یستلوذریعه داده چې سړی له نیکوخلکوسره په مجلسونوکې ګډون وکړي څکه دهرمجلس اثرپه انسان باندې پریوزي.

لکه شاعرچې وایي:

صحبت صالح تراصالح کند - صحبت طالح تراطالح کند

نوکله چې داتوبه کوونکی انسان دالله تعالی ﷻ لوري ته متوجې کیږي او دخپلو ګناهونوتصوروکړي نوله خپلوګناهونو څخه تائب شي ددې په اړه زه تاسې ته دیوڅوواقعاتو یادونه کوم

## حضرت حکیم ثنائی څرنګه دغوث مقام ته ورسید؟

دوخت لوی صوفي اودغزني داولیاء کرامومشهورولي حکیم ثنايي صاحب رحمه الله چې دوخت غوث دی داډېرمخکنی شخص تیرشوی دی تردې پورې چې خپنودسلوک خاوندانوداهم ویلي چې

حضرت پیران پیرصاحب رحمه الله به هم دده مبارک زیارت ته راتللوشاه نقشبند رحمه الله هم دده زیارت ته راتلونو؛ پرمخکنی شخص دی نودې حکیم ثنايي صاحب خپله دخپل خان دتوبې له پاره یوه وجه ذکرکوي حضرت حکیم ثنايي رحمه الله خپله شاعرؤدفارسي مثنوي لري نودی خپله کیسه کوي چې په غزني کې دلارې پرغاړه یو ملنگ ناست ؤ،هغه ملنگ به چای باندې ؤ یوه نیم سړي ته به چای ورکولو کمه اندازه چای به یې ورکولواوهرسړي ته یې هم نه ورکولودی خاص دمقربومتصرفینو له جملې څخه ؤنوحکیم ثنايي صاحب وایي چې یوه ورځ زه اویودوه کسان په دې لاره باندې ورغلونوموږله دې ملنگ سره کیناستلو یوه ،یوه پیاله چای یې راکړ نوماته یې دچای راکولوپرمهال وویل چې واخله ویې څښه اې دیوانه!(لیونیه) له همدغه ځایه چې ولاړونوپه لارې باندې فکرراسره پیداشوچې دغه ملنگ ولې ماته لیوني وویل زه خویوغوره شاعراوادیب یم بلکې ټول خلک ماته داحترام په سترګه ګوري نودې ملنگ ماته څرنګه دلیوني نسبت وکړ نوبیرته له نیمایي لارې څخه ورو ګرځېدم دې ملنگ ته راغلم اوورته کیناستم نودغه ملنگ ته مې وویل چې تاماته دلیوني نسبت ولې وکړ؟ زه په څه وجه باندې لیونی یم اوسره له دې چې ټول خلک زمااحترام کوي اودعزت په سترګوراته ګوري ټول خلک زمایه علمیت اديبوالي اوشاعري باندې قائل دي اوته راته لیونی وایي نودې ملنگ راته وویل چې تردغه غټ لیونتوب نوبیاچېرته دی چې شپه اوورځ دبادشاهانواوسردارانوپه صفت باندې لګیایې

اوهغه لوی بادشاه چې خدایﷻ دی هغه درخخه هېردی همدغه وخت چې ته يې دبادشاهانواوسردارانوپه صفت تېروي دادې داللهﷻ په ذکرباندې تېرولای نودنیااواخیرت به دې برابرشوي و ته ددنیااعزازغوارې دبادشاهانواوسردارانوپه دربارونو ګرځې اود هغوی صفتونه کوې اواللهﷻدرڅخه هېرشوی دی نو.حکیم ثنایي رحمة الله عليه وايي چې دملنګ دې يوې خبرې پرماباندې دومره زيات اثر وکړچې دټول وخت له پاره مې توبه ويستله چې زه به بيا دبادشاهانواوسردارانوپه دربارونوباندې ونه ګرځم اواشعاربه نو رنه وايم توبه مې ويستله اواللهﷻ ته مې رجوع وکړه وګورئ اې مسلمانانو!دنيکوخلکواثراتوته چې بيادنيکو خلکو دبيعت په برکت دېرلوی مقام ته ورسيده همدارنګه حضرت حبيب عجمي رحمة الله عليه واقعه پڼه مخکې په يوه مجلس کې ذکرشوېده په هغه کې هم دتوبې بيان شوی دی همدارنګه دعبدالقادر جيلاني رحمة الله عليه «پيران پيرصاحب» دتوبې واقعه مخکې ذکرشوېده اوهمدارنګه هغه دوه صحابه کرام رضي الله عنهما چې درسول اللهﷺ له خبرې څخه يې سرغړونه کړې وه بيادهغه يوه دتوبې خبره مخکې ذکرشوېده.

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خيرخلقه محمد وعلى اله واصحابه

اجمعين

